# نا پایه چونغر

انسان دځه لپاره د طبیعت په پیچلې هستي کې دا ستوما نوو نکي مزلونه لنډوي. دځه شي په لټه کې دی او ولي له پر له پسې منډو او هلو ځلو څخه لا س نه اخلي ؟

ژوند او په سړي کې د دوام یوه نا پا یه تنده ، د هستېدو یوه مقدسه لمبه ، په نړۍ کې د ټولو رنګونو او آوازونو دهستېدو لپاره کار کوي،تر څو زموږ په کوچنۍ سیا ره کې د پیروونو دسترې هستي او تر هغو د را چا پیر شوي ما حول غوښتنې او د نظم او توازن سنفوني پر مخ بوزي او هغه څه ته چې موږ لا سم نه پې پوهېږ.و کما ل او جمال ور کړي .

د کوچني انسان منــــــدېې او هـــلې ځـــلې د ستړې هستۍ د رشد او تکـــامل د رضابخشونکې جبر د ژوند ناموس دی. سړی نشي دربدلای او طبیعت نشي دربدلای.

دانسان تکل او تفکر، دهغه منډه او چیغه دستر او ناپایه طبیعت د دوام د ضرورت یوه برخه ده. دی ځان دهستوونکې په مـــقام کې ویني، نګېري په ځان کې نه ځاییږي او لکه طبیعت ناپایه دی، رنګونه او عطرونه، آوازونه او پروازونه او هره هغه ښکلې جلوه چې د طبیعت په اجـــزاوو کې څپې وهي، له ده څخه رازېږي او په ده کې ختمېـــږي، خو واقعیت داسي نه دی کومه منډه چې پیل شوې ده پای نـــلري .هیڅ بربښنا، هېڅ تالنده او هېڅ حرکت نه ختمېږي، یوازې خپــله بڼه اړوي او په نوې بڼه او لا نوې بڼه کې ابدي جریان مومي.

د یوه کوچني اور اورکي چونجي دوزرونو رڼا او دګـــــل پرپاڼه دیوې پرخې د څاڅکې ځلا پای او انجام نلري. بلکې د هستۍ په لویه غېږه کې له یوې جلوې څخه بلې ته او له بلې نه بلې ته ځای بدلوي او د ترکیب او تجزیې په ضروري خلود کې دابدیت پر ناپایه واټ باندې لار وهي او د بې انجامه مقصد خواته ور ځغلي.

هغه تاو او تودوخه چې په ماکې دچونغر کوڼ ګــــرو جلوو را پیدا کړې ده، د همدې ابدي جبري تکل او ددې نه تما مېــــــدونکي ترکیب او تجزیې د بهیر دپر له پسې څپو د لایتناهي څاڅکو یو واحدفرد دی. داسي فرد چې کله لکه او ښکه د غمونو او دردونو راز سپړي او کله لکه شبنم د ګلپاڼو په رنګینه غېږ کې رغړي.

چونغر څاڅکی دی خو لکه زه، لکه انسان ناپایه دی. هغه به ترکلونو کلونو زموږ دشببې رنګونه او عطرونه د مستقبلونو له را غوړېدونکو رنګونو او عطرونو سره ترکیبوي او نن ته به په سباکې دوام ورکوي.

سلیمان لایق

۱۳٦۱ر۵ر۲۵

# زما وطنه

اې زمـــــا ښـــکلي وطنه زمـــــا تنه
زما كوره ، زما گوره ، زما عـــــدنه
چې نارام شم ته مې وياړې ، ته مې نازې
ستا زانـــگو د باباغېږ د مـــور لمنه
زما په ډډو دگلانـــــو پا لنګ لگي
كه هر څومـــره د ستا خاوره شي اغزنه
په درو كې ، په سيندو كې ، په رغو كې
په هر گام كې دې د ژوند سندره پلنه
هره تيږه دې له شـور او زوره ډكه
د فـــــرنګ د يرغــــلو دندان شكنه
ستـا په ښنو كې سپېلنى شم وياړنى شم
اې زمـــــا ښـــكلى وطنه ، زما تنه !!!

## د پښتو کوره

اې د اشيا تاجه د لرغونو عظمتو کوره
گران افغانستانه، د زړه سره، د پښتو کـــوره
مينه دې خوځېږي زما په شعر کې څپې څپې
اې د لوړو غرونو او سيندونو او درو کـــوره
ستا په طبيعت کې، طبيعت هم رزمي شوی دی
اې د سېلاوونو او واورينو توفـانو کـوره
هره لوېشته خاورې دې کتاب کتاب خبرې دي
اې د روايـــــاتو، مذهبو او ترانــــو کوره
ښـــاد دې يې، آزاد دې يې، ودان دې يې!
کور دامنيت دې يې، کعبه دهر افغـــــان دې يې!

# زلمي ته

راوزه، له دردو او ارمـــــانو سره راوزه
له عـــلم او له کتاب او له فکرو سره راوزه

له گوټ دانزوا نه چې کلونه پکې ناست وې
د ژونـــــد د حقيقت له فلسفو سره راوزه

فرصت د ځغلېـــدو بيا زمـانې درته درکړی
ميـــدان د امتحان ته له جلـــوو سره راوزه

غـــــورځونه له زړو زړو خبـرو ستړي شوي
له نويو مضمـــونو او ترانــــو سره راوزه

ددې ښـــکلي وطن دنيمـــگړتياوو تلافي ته
له عشق او له وفـــــا او نهضتــو سره راوزه

اې ځـــــوانه اې افغـانه اې دعصر رازداره
له بشپړ حـــــرارت او له لمبـــــو سره راوزه

# د ملګرو کاروان

په په مشرق کې بيا روان دی توفان ورو ورو
ځکه خوځي مې په زړه کې ارمان ورو ورو
د افغـــــان دوحدت سېـــــل راروان شوی
پرې ډوبېـــــږي وطني پرنـــګيان ورو ورو
د ژونـــــــد باد له ابا سينه راخو ځېـــــږي
خوځوي د بـــا غ د حورو زلفان ورو رورو
بيـــــا په زړه د هنـــــدو کش کې اور بلېږي
ترې تاوېــــږي دوطن پتنـــګان ورو ورو
نه پوهېـــــږم زمانه په څه تدبيــــــــر ده
چې را باسي له رمې نه لېــــــوان ورو ورو
له نــــاوې د آبا سيـــن تر آمــــــو سينه
را غوړېــــــږي زما د هيلو ګـــلان ورو ورو
دا ويــــران ويجـــــاړ وطن به ګلستان شي
چې پې اوري زما داوښـــکو باران ورو ورو
زړه مې ځـــــکه دوصــــال له ميو مست دی
چې ځوځېږي د ملـــګرو کاروان ورو ورو
د «لايق» د سينې تـــــاو به بهــــــر نشي
څو پاخه شي دغه نوي ځــــوانان ورو ورو

# د خولو باران

ژړوي مې تېر يادونه د شباب
زه كه څه يمه د غرونو ځيږ افغان
يو ځل دومره مهلت را كړه چې اوبه كړم
ستا د شونډو په شربت تږى ارمان
پرېږده پرېږده چې راوسپړي ګلونه
دا تېره تېره اغزي د بيا بان
كه لا سونه د باغوان واى خو ځېدلي
لا په خوابه دا ببدیا وه ګلستان
هره لوېشته يې د ميني منزلګاه وه
داوطن چې اوس لوځ شوى په دا شان
هره تيږه د وطن بچوته ژاړي
خو افسوس چې څوك يې نه اوري فغان
دلړمو او مارانو په ځاى پرېږده
پري خواره شي سندر غاړي بلبلان
هره څنډه به يې رشك د فردوس شي
كه پې سم شي د خولو ګرم باران

# د پسرلي ډېوې

دا اورونه په بېـــــديا وو کې بلېــږي
که د سرو گلو غوټۍ دي چې غوړېږي؟
د خــــــاټولو قافـــــلې دي راروانې
که د سرو ميــــو پيالې وېشلې کېږي؟
نوي نوي قـــــوتونه، آرزو گـــانې
په رگـــو د بزگـــــرانو کې نڅيږي
څوانه گوره چې فرصت درنه لاړ نشي
زمـــــانه انتظار نه باسي تېرېږي
د وطن فضـــــا هوا او د ښتې غرونه
د ظلمـــــــوله ارمانو سـره سمېږي
زمـــــانه به پرده پورته کړي له کاره
د زاهـد زړگی که چوي که ويليږي
چې په سر کې يې هوس د مستي نه وي
هغه کــــام نه پورته کېږي ، نه رغېږي
پسرلی به نــوي نــوي زېـري راوړي
چې د فکـــــــر مسيحا پکې خوځېږي

# دپنجشېرباز

ځـــــومره زړوردی دا دغــــرونو د پنجشېرباز
زړه له زمــــري باسي په منــگولو دا سرتېرباز
ما دخنــــج[1] د پا سه په ډبــروکې ليد لی دی
يوه رپ کې د ستـــرگو، له نظره شي بيا تېرباز
زوريې دسېلاب ، منډه برېښنا ، حمله يې تندرده
ستر مظهــر دخلکـــو دقدرت دی دغه هېرباز
ژرنده دآسمان يې که دسرپه کـــاسه وگرزي
ټيټ به نشي چـــاته دا مغـــرور دغه دلېرباز

---

۱ ــ په پنجشېر کې يوه دره ده .

# دکباب بوی

زړه مې په دردو کې بنـــــا کړی پېـــــچ و تاب
نه پو هېـــږم اور دی، که جنـــون، که انقـــلاب
اوري له قلـــــمه مې دردونه په خبـــــــــرو کې
ووایه ناصحه څنـــــگه بند کـــــړم دا حساب
ورانه میخـــانه کـــړې نه پو هېږم څه پې شوي دي
ولي پـــــکې نشته نه ســــاقي او نه خـــراب
نه دلته په جوش او په مستئ کې څوک نڅا کوي
نه پکې مطـــــرب شته نه مـــــلگري نه رباب
نه هغه صـــــوفي شته چې صفا د بایزیــــد لري
نه هغه شیطــــــان شته چې آدم یې که خـــراب
لارې د مسجـــــد او میخـــــانې دواړه تړلې دي
نشته دی توفیـــــــق نه دثـــواب نه دعـــذاب
نه په دې چمن کې یو شین ډکـــــی د گیـــــا وینم
نه په دې بستان کې یو بلبـــــــل او یا گـــــلاب
زړونه یا سینې دي د حرمـــــان په لمبو سوې دي
بوی که چېرې جگ شي د وریت شوي یا کباب

# پښتون زلمی ته

گرزه مـــــــــلا تړلی له وســــــلو سره
جـــــــار دې شم زلمیه له پښتــــــو سره
زړه د دښمنـــــــــانو دې لـــړزانده وي
ستــــــــا د شجاعت له زلـــــزلو سره
خـــــــاوره د وطن بې میـــو مسته ده
ستــــــــا داحساساتو له ځپـــو سره
زما قـــــــــلم او ژبه دتر خــــاورو شي
سم که نشي ستـــــــــاله قد مــو سره
پل کیږده چې ستـــر گې درته کیږدمه
زړه ســــــره، له سر او له لیمــــو سره
فخر کوه خــــــانده چې در جار شمه
داوطن د تـــــــادی لوړو غـــــــرو سره
گرمه کړه گــــــــرمي دخپلوا کۍ پسې
اې د اور بخـــــــــر کې له لمبـــو سره
باز که ستــــــا په کور بې ځایه والوزي
وبه سوځي ځــــــــاله له بچـــو سره
جاردې شمه، جاردې شمه، جار دې شم
جـــــــار دې شم زلمیه ، له پښتــو سره

# زړورزړه

که لايق دخپل هيواد وفادار نه وای
هسي رنګه به هېر شوی او خوار نه وای

که مي زړه د زړورو په لارنه تلای
هر طرف به پي دتورو ګوزار نه وای

که مي غږ دخلکو نه وای اوچت کړی
د تورونو په چپاو به آزار نه وای

شاعری ته به مي لاس نه و ور وړی
که مي قام سره د زړه اختيار نه وای

زماني که زما درد وای ازمويلی
هسي رنګه به ساکت او کرار نه وای

ما به څله زړه نيوو داور لمبوته
که له ژوند سره مي خيال دقمار نه وای

# قافله

بې مطلبه بې مطـــــلوبه هره خوا وهي گـــــامونه
نه پوهېږم کـــــــوم پلوځي دا زمـــوږه کاروانونه

په دې ګڼې قافــــلې کې نه مجنون شته نه ليلا شته
چاته يوسو ارمـــــانونه ، چاته وژاړو غمــــونه

په دردو يــــو اخته شوي، نه طبيب شته نه دوا شته
څه بې ځــا يه کېږي لي دازمـــــوږ زاړه دردونه

کاشکې نه واى يو ځاى شوى له دې ورانې قافلې زه
يا بدله واى دا ځمـــــکه او يا نور واى دا کـــلونه

ويښ به نشي دغه قـــــوم که نغمه شم سر تر پــا يه
که رباب غونـــــدې گويا شي د لايق د زړه تــارونه

# د خلکو بيرغ

د فکر په ټالـــــونو کې زنګېـــــږمه زنګېږم
د غم په دريابــــــونو کې غرقېـــږمه غرقېږم
چې وينـــــــو د بې دردو کې ونشوم لمبېدلی
په اوښــکو کې مې پرېږدې چې لمبېږمه لمبېږم
ناصحه زما لمبو ته غرض مه کړه غرض مه کړه
ما پرېږده پخپل اور کې چې سوځېږمه سوځېږم
آدم يم د درخو په لـــور بې واکه بې اختياره
روان يم په دې هيــــله چې رسېـــږمه رسېږم
د قوم په دماغ کې چې کــوم نوی توفان راشي
د شعر په جـــــامه کې زه نخېــــږمه نخېږم
د خــــلکو د قدرت په لاس لوېدلی يو بيرغ يم
د دوی په احساساتــــو کې رپېـــږمه رپېږم
زه څه يم دا اولس دی چې هر لورې ته مې بيايي
د دوی تر ارادې لانــــدې خوځېږمه خوځېږم

# د عصر ساز

بیا ساقي راغلی ترخـــــو میو ته بلل کوي
اوریې په پیـــالو کې اچولی ازمویل کوي

ساز نن بل آواز، بله نغمه، بله مـــزه لري
عصر زېږولی د ذوقـــونو سمـــول کوي

فصل د گلونو د اشیا په لـــوړو غرونو کې
غلی خو ځېدلی د کامـــونو خوځول کوي

خوند د زاهـــدانو له تقوا څخه وتلی دی
زهـــد ریایي شو د زهـــادو شرمول کوي

دا بـــلاا نسان بیا په رگـــو د کائناتو کې
ورو ورو لگیا شوی د اسرارو لټول کوي

هیلې د وطن د ولسونو زمـــا په شعر کې
نویو ارمانو ته د فـــکرونو اړول کوي

# ګيله منه مينه

په بهانو مې له خپـــــل ځانه شړي
چا ته ګيـــــله چـــاته ژړا وکړم

پخپـــــــله سهو نه پوهېـــــږمه زه
د کـــــــومې عفو تمنـــــا وکړم

نه مې مني او نه مې زړه را کـــوي
چـــا ته شـــکوه ددې بـــــلا وکړم

لېـــونى زړه مې نه صبرېږي ورونو
چـــــا سره کېنمه ســــــــلا وکړم

رقيب زمـــــــا د عمر غم خـــوړلى
ژړا دنن که د سبـــــــا وکــــــړم

اشنـــــا بېلېــــــږي ، زړه اشنا لټوي
عذر د زړه که دا شنـــــــــا وکړم

په دې بې درده دنيـــــا ګې کې ربه
له چـــــــا نه هيله د وفـــــا وکړم

# ساقي ته

ساقي لاس وړه پيمـــانې ته چې ځنډ پرې
د زمـــــان قـــــافله درومي نه درېږي
څو چې ستـــر گې وازوو بهار به نه وي
ځواني خوږ شاني يو خوب دى او تېرېږي
نه په عمــــــر څه بـــاور شته نه په حسن
څوک خبر دى چې سبا لمر به پې خېژي
خـــــام حريف د خم مدار ته منتظر دى
بدمستي د تاک په پـــــاڼو کې نڅېږي
خوبان خوشي خپـل جمال ته غره شوي
د گـــــل پاڼه په يوه سېـــــلۍ رژېږي
هغه لوښى چې کـلال د زمان جوړ کړي
خامخــــــابه د هغه په لاس متېـــــرې
ساقي راکــــــړه پيمانه پروايې مه کړه
ښه پوهېـــږې چې څه کېږي هغه کېږي
د زاهـــــد داکـــــردې او جفـــا گانې
تش په ميــــــو عـــــلا جېږي او هېـــرېږي
ژر مې مست کړه چې فضول عقل مې وژني
دافضا مـــــــا لره تنگه کېـــــږي

## لنډ عمر

څو غوټۍ ورته خنـــــد لې بهار تېر شو
لا مســکا يې کړې نه وه چې وار تېر شو
د شبېو د تېـــرېدو په هنـــــګامه کې
ژوندون ستر ګې خلاصولې قطار تېر شو
ما پيـــاله پورته کوله چې ځان تود کم
زه لا نه و مه تود شوی انــــګار تېر شو
رنځور زړه مې رغاوه د يار په سترګو
د برېښنا په منـــډه يار او بيمار تېر شو

# عاشقانه تپوس

ما ویل په پښو مې درست جهان در پسې وغوښت
دې ویل آگا یم په دې در بدرو زه
ما ویل زخمي زړه به مې څوک دارو درمل کړي
دې ویل په ښکلو او خوږو خبرو زه
ما ویل درست عمر مې په داد او فریاد تېر شو
دې ویل پوهېږم په دې بې اثرو زه
ما وې په سینه دې دوه کوترې دې رپېږي
پرې مې زړه چې لو بم پې دې دوو کوترو زه
ورانه له خندا شوه وې یې: نه نه نه نه نه
څوکې به در نکړم ددې دوو وزرو زه
ما ویل که مړ شوم کوم نظر به مې ژوندی کړي
دې ویل په دغو دواړو جادو گرو زه
ما وې رقیبانو را تریخ کړی زما کام دی
دې ویل چې خوږ بې کم په سرو شکرو زه
ما ویل زما په گرېوان نشته مرغلرې
دې ویل جړاو بې کم په مرغلرو زه
دې وې ملایان زموږ په مینه خبر شوي
ما ویل خبر یم په دې بې خبرو زه
دې ویل په ښار کې وفادار ملگری نشته
ما ویل چې خیر دی د غرو کمرو زه

# عشق دريا ب دی

بيا ليـــــــــلا د چاپېښو ته غـــــــوږولئ سلسلې دي
چې نسيم له غــــــرو را وړې دعنبرو قافـــلې دي

زړه مې پرېښوده فر ياد ته، بې فر ياده زړه به څه کم؟
سر نو شت د عا شقــــــا نو همدا سوې غلغـلې دي

بېـــگا خوب کې بې سببه ، له سپو ږمئ نه وېرېدمه
گوندې بيا ديار په زړه کې پيدا شوې څه گيـلې دي

په مستئ کې ســـــا قي و وې: تشوئ يې تشوی يې
که څه شته دي په دنيـــــا کې دا د ميو قلقلې دي

بلبل وينې غورځــــــولې د گـــــــــلانو پر اغزيو
پتنـگ وويل په اور کې: دا اولې مرحــــــلې دي

اې زما لېونی عشقه ځـــلاند اوسه ، ژوندی اوسه
هر مشــــکل دې لذ تونه ، هر آفت دې حوصلې دي

عشق دريا ب لايق حباب دی په هر موج هره څپه کې
ټکـــرونه، تندرونه، محشرونه ، زلـــــزلې دي

# د پښتو اجاره دار ته

د پښتو اجـــــاره داره، بیــــا دې څه دام غوړولی
بیا دې کوم یو ایسار کړی، بیــــا دې کوم یو کړولی
بیــــا په زړه کې چاته گوا ښې، بیــا دننه چاته اېښې
بیــــا دې څوک په ښنه کړی، بیا دې کوم یو نړولی
ته په خودیې که بې خودیې، دا په څه شي لوبې کاندې
دغــــه ژبه د ملت ده، نه د هـــــــرې ښې څلی
مه له ځانه څه ترې باسه، مه له گېـډې څه ور باسه
دا بنیـــــاد دپښتنو دی، ډېر منــــلی ډېر سپېڅلی
هر زلمي ته مه خرنډېږه، پخپـــــل فکر مه ټینگېږه
زمانه لــــکه سېلاب ده، وړي هر زوړ له کــاره تللی

# اې هيلو!

لري شئ اې هيـــــلو له مـــالري شئ
وتښتئ، پردۍ شئ، مــــــروري شئ

مه ژاړئ زمـــــــا په دردو مه ژاړئ
اې زمــا غريب ستر گـــو ډبرې شئ

او ښـــکو زما له ستر گو څخه والوزئ
غـــاړو کې دنورو مرغــــــلرې شئ

اې زما دژونـــــد ترخو ترخو غمـــو
و خوځئ شعرونه شئ، خبـــرې شئ

اې دخـــــلکو هيــلو زما په شعر کې
پورته شئ آسمــــان ته لرو برې شئ

تندر شئ، برېښنا شئ ، سېلاوونه شئ
تورې تورې وربځې شئ ، ځپرې شئ

# اوښتی بخت

زړه مې په غمـــونو کې گــډ پړي بېتابي کوي
سېل مې له لېمو نه را روان دی خـــرا بي کوي

هيله لېـــونۍ شوه، ړنگه بنـــگه بې جلبه ځي
نه منې خبـــرې مې پېښې د شـــــرابي کوي

سامې ښکته پورته ځي، نغمې د سوزو سازوهي
ژونـــد نارامه کړې ده پېښې دربـــابي کوي

وســوله سينه مې د دردونوله گـــرمۍ څخه
لارترې ورکه شوې سوځـــول د کبابي کوي

لارې د سارا او د ځنـــــگل دواړه تړلې دي
عقل گمـــرا شوی ادعـــا د نوابي کوي

زه لايق د هسې بدبختـــۍ او جفـــا نه ومه
بخت په بله مخه اوښتـــلی خـــرابي کوي

# د ژوند فکر

د گـــل خنـــداماته ژړا را ولي
ستر گو ته شونـډې د اشنا راولي

د پروانې تـــرايرو و گـــــرزمه
چې بـــوی دمينې او وفـــا راولي

ســــاقي په مستو لبــــونيو کتو
مستان بې ميـــو په نخـــا راولي

دميخـــــانې داننـــــــي دودونه
زلمــــــوته هيله دسبا راولي

نوي خيـــالونه هديرې ته زموږ
دژوند لپـــــاره مسيحا راولي

دعاشقـــانو ژېړ او مات رنگونه
فرعــــون دمينې ته موسا راولي

لايق خپـل کام ته د ادب په ژبه
فـــکر دژوند او دبقـــا راولي

# زهد شکن ښا یست

ستا د حسن په سپېـــــدو کې خوځېـــــد لې زلزلې دي
د آسمــــــــان له سخته زړه نه پورته شوې ترانې دي

نه پو هېږم څه محشر دی ستا د ستر گو په گردش کې
چې یـــــا ران یې نېشه کړي بې د میــــو له پیالې دي

ستا د سرو سترگـــــو له تاوه کباب شوي لړمـونونه
دا لالونه که یاقوت دي، که سکـروټې که لمبې دي

هر ښا یست چې تجلی کړي زما په شعر او اندېښنو کې
ستا د تیـــــو یا د سترگـــــو یا د زلفو کرشمې دي

ستا له هسي جلوې جار شم چې زا هد یې په ملامات که
کړنگـــولي یې جامونه ، ننگـــــولې میخـــا نې دي

څه به هڅه د طاعت کـړم، څه به هیله د جنت کړم
ښه پو هېږم ستا په عشق کې تورې شویې خاتمې دي

لا یق دومـــــره ساده ندی چې دوصـــــل تمه دار شي
ستا دغېـــــږي په ارمان کې ډکې شوې هـد یرې دي

# وحشي طبعه

نه منت د خـــــرابات وړي نه مننه د حـــــــرم کړي
څه وحشي طبعه لرمه چې له ټـــــولو څخه رم کړي

د ملـــــــگرو خامي هیلې هغه چارې په ما کـــاندي
چې تبې یې په غنـــــم کړي حرارت یې په شبنم کړي

زړه مې بس چې د یـــــــارانو ځان ځاني آزرده کړی
نه دچا په خندي خـــاندي ، نه د چا په غمو غم کړي

د صحرا له سره شفق نه د جنـــــــون پیغـــام رارسي
په آدم چې مینې و کــــــړې هغه چارې په ما هم کړي

پریشان تو فــــان خو ځېږي د درخـــو د څنو موج کې
را ته ښکاري دا سېلاب به زما د زړه خونه بر هم کړي

گو شمالي د حــــــــوادثو هغه چارې په ما کـــــاندي
لکه گوتې د مطـــــرب چې د رباب په زیر و بم کړي

ساقي مـــــړ کړم حسرتونو ، خاورې شویو ارمانونو
یوه تر خه پیمانه را کړه گوندې وي چې څه مې تم کړي

# د ګلانو بستر

بيا مې ساقي وليد د خيالونو په خـــوبونو کې
بيا دجنت حورې راته نا څي په جـــــامونو کې

زه د ســــــکند ر دآيينې څه ګــــــدا نه يمه
زه هر څه ليدا ی شمه د ښــکلو په مخونو کې

غـــرونه که لالونه شي طلا شي او زما شي بيا
نه ارزي پدې چې ځواني تېره کم غمونو کې

زه که می پرست نه يم نو څه به شم او څه به يم
څه پسې به ګرزم د مړې خورې په رګونو کې

زانګم د سپوږمۍ په تنا وو کې له جانان سره
خيـــال چې را سره شي د نېشې په جنتونو کې

کله چې د يـــار په سودا پرېوزمه ويده شمه
اوړم په ګـــلونو کې را اوړم په ګـــلونو کې

# د اور جامونه

ستا په یاد چې پیمانه کړمـــــــــه او چته
ټول غمونه کې ښکاره شي جام جم شي

دعشق هـــــره ترانه چې له مـــا وزي
د سرو وینـو په لار ځي د زړونو غـم شي

هــــــر یو گل ته چې د مینې مـــوسکا وکړم
لاغــوټی وي چې د بل سړي حـــرم شي

عشق د هـــــر عشرت پرسته مقــام ند ی
عـــاشق هغه چې د اور لمبــو ته تــم شي

زه د هجـــر دتوفــــــان یاغي مارغه یم
هـر یو تندر چې راکــــوز شي ما ته سم شي

دا زما تور سرنوشت گـــوره په څه دی
څوک چې زړه ته رانیږدې کم په ما گرم شي

نه به مــــخ د مصیبت له مـــا نه واوړي
نه به جنــــگ له خپل تقـدیره زما کم شي

جگي جگي ســـــا قي را د اور جامــــــو نه
گونـــــدې غم زما د زړه د ټول عالم شي

# اندیښني

یا زما ستـــــرګي ښــــکلا نه پېژني
یا په دې عصــــر کې ښـــــکلا نشته

ساقي که هر څومره پیالې ګړنګوي
خـــو د یارانو اشتـــــها نشته

پدې سړو سړو ذوقـــــو کې مګر
څاڅـــــکی دمینې او وفـا نشته

یـــوائې پــــاتې یم ژړا رائحي
په دغــــو خــــلکو کې اشنا نشته

تورې په تېــــکو کې زنـګنې شولې
توان د جهـاد او د غـــــزا نشته

په دې نوکــــاره حریفانو کې هېڅ
فـــــکر د ژوند او د بقـــــا نشته

په دغــــو سوځنده لمبــو کې ربه
یوه ګــــوشه د انــــــزوا نشته

# گيله

زمـــــا دردونه که دوا نلـــــري
دتـــــا ښايست هم څه بقـــا نلري

د پېغلتوب په شرنګ مغروره مه شه
دا يوه برېښنـــــا ده او وفـا نلري

ما ته وعدې د نن سبـــــا مه کوه
عمــــــر مهلت د نن سبـــــا نلري

ستر ګې چې ژاړي ګناهکارې ندي
د غـــــم چينې بله متـــــــا نلري

لېــــــونی زړه مې وايه چـا ته بوزم
هغه بل لـــــــوری بې له تـــا نلري

زمـــــا د صبر پيـــــا له ډکه شوله
دتا عــــــــذرونه انتهـــــــا نلري

# د دردونو يار

آشنا ساقي شه چې خمـــار لرمه
د زړه په سر د غم غبــــار لرمه

ما ته د حـــزم نصيحت مه کوه
زه له خپل ژوند سره قمـار لرمه

له اوره ډکې کړه پيـــالې د ميو
چې نن دســــولو انتظار لرمه

له وښيـــارانو تښتېدلی يمه
له لېـــونيو سرو کـــار لرمه

ملا که وياړي د جنت په حورو
زه د دردونو افتخــــار لرمه

لکه ډېـوه سوځم او ژوند کومه
کاروان د اوښکو سره لار لرمه

له دې نازکـــو خيـــالونو سره
د ګل په پـــا ڼو کې مــزار لرمه

# مروره زړه

زړه مې ويلي کېږي له کــوګله ځي
نور دژونـــــدانه له دې مشله ځي

عصر بد هــــــوادى وفا نــــکوي
څه چې له مـــا ځي له دې کبله ځي

وا يي محتسب اختيــــار نشته دى
هر څه چې روان دي له ا زله ځي

وســــوم د دردو له انتظار څخه
ميـــــل مې جنون ته کله کله ځي

وايي چې کوږ بار مزل ته نه رسي
دلته بې درنـــګه تر مــــزله ځي

زړه مې مــــرور دى له مــلګرو نه
هرې خـــوا ته تښتي له کـابله ځي

# ځان له جهان

په زمـــــا زه دې ښه پو هېـــــــړمه زه
بيـــــا دې په دام کې نه بند يـــړمه زه

يو ځــــل چې والوتلــــــم وا لوتمه
بيـــــا دې پهلــــــوبه نه غوليږمه زه

په تزويرو دې را ستـــــون کړی ومه
اوس په ځنځيــــــر کې نه تمېـــږمه زه

بيـــــا په خــــوږو کې زهــــر مه را کوه
اوس وښيـــــار شوی يم پوهېـــږمه زه

ځمه او ځــــــان لره جهــــــان لټوم
ستــــا په جهــــان کې نه اوسېږمه زه

که مې په زړه کې ستــا تصوير وخوځي
د غــــم په اور کې به يې سيــــــزمه زه

# تېروتلی عشق

ډېر کـــــلونه تېر شول چې له تا نه جلا شوی يم
وړی اند ېښنــــــو يم مجسمه ســودا شوی يم

هر گل چې خنـــدلي يو ځل ما ورته ژړلي دي
هر اور ته پتنـــګ هرې غنچې ته بورا شوی يم

هر څو که زمــــــا گنــــــا له تا سره لا پټه ده
څه وکړم مگر چې خپل ضمير ته رسوا شوی يم

نورو که خنـــدلي خپل اقبال ته يې خندلي دي
زه خپـــلو غمو ته نا څاپي په خنـــــدا شوی يم

# بې تودوخې مجلس

زه د خپـــل زړه په دردونـــو نه پوهېږم
خلک خـــاندي خپل تقدیر ته زه ژړېږم
په مجلس کې حـــرارت د پـرون نشته
هره ورځ چې نـــوې کېږي زه سړېږم
حریفـــان په چیغو چیغو تظـاهر کړي
ساقي خا نـدي په دې وزه زه شرمېږم
په مجلس کې چې د مینې مستي نه وي
په تش میـــو نه گرمېـــږم نه مستېږم
ساقي جـــام او پیمانه دې ښېرته واخله
زه گـــوشې د جومـــا تونو ته ستنېږم
هلته لرې به یوه ځـــانته ډېـوه بل کړم
پټ د ننه به په زړه کې ویـــلي کېـــږم
گونـــدې وي چې په گو شه دا نزوا کې
یوې پا کې تمنـــا ته وخنـــــدېږم

# لنډ ژوند

که لـــــو گی شي زما د ژوند بیخ و بنیاد
زړه به سوړ نشي د دې ښـــــکلي جـــلاد

دا چې یار ما د هر گـــــل عندلیب بولي
د غمـــــاز په خوله یې کـــــړی استناد

دا سنـــــد زما د وفـــــا ندی نو څه دی
عشق مې سوځي او زه نه کـــوم فـــریاد

زما او یار ترمنځ چې سل پردې پرتې وي
د قبـــول غوږ ته به څنـــــگه رسي داد؟

په ناکـــــامو لارو بوتلمه خامــــانو
په عبث کې رانه عمـــــــر شو بربـــاد

کاشکې دا بې خونده عمر مې بدل وای
په یوه رپ لــــــکه برېښنا مگـــر آزاد

# خاندي لبونی

خاندي لبونی چې په جنون کې به لا څه وي ؟
ګوره چې دعشق په موج خون کې به لا څه وي ؟

مست چې د ساقي په یوه عتاب پیاله نسکوره کړه
خدا زده د زاهد په شبیخون کې به لا څه وي؟

خام په یوه جلوه د ترکو ناز بې سده کړی دی
ګوره چې د مینې په تړون کې به لا څه وي؟

موږ ته له زړو نه لا زاړه غمـــونه پاتې دي
خدازده چې دعصر نوي یون کې به لا څه وي؟

تــورې چې په سپینه ژبه سر دانسان لرې که
ګوره د اتوم په سره لړمــون کې به لاڅه‌وي؟

سر زما د قــوم همېشه نورو ته خاورې شو
آیـــا چې په برخه د پښتون کې به لا څه وي؟

خوځې زلزلې بیا دنړۍ په تنـــا وونو کې
ګوره چپاوونو د ګـــردون کې به لا څه وي؟

# دا کوچنې څاڅکې

څه کوي دا سره کوچنۍ وربڅه له آسمــان سره
څه غواړي ډومبسکی[1] له موجـونو دتوفان سره

ولي دا مجبــــور بشر نــــارې دآزادۍ وهي
څه دي د لاس ماتي دمـــړوند له امتحـــان سره

نه نه اې شاعره! ته وهمـــونو غولـــــولی يې
گوره چې لا څه کړي دا مجبور له اين و آن سره

دا ما شوم ډومبسکی په وهمـــونو کې اسير ندی
دا بخــــر کی وربڅه سپـکه نده له آسمان سره

دې وړو ته گـــوره په واړه نظـــر ونه گـــورې
مل که يې قطره نه وي نو څه دي له توفـــان سره

دا وړې قطرې به عالمـــونه لاندې باندې کړي
يو که شي له ميــــل دمـــکان او دزمـان سره

مه اخله نظـــــر بلنـــد نظره له دې ټيټـــو نه
سپک به دې شي وزن د جـــگوالي له ميلان سره

# د قافلو هادی

باز دهنـــدو کش یمه اتل دلــوړو غرو یمه
ننـــګ یمه، غیـــرت یمه، بخرکی د پښتو یمه

رېږدي زما له تورې ددښمن زړه لا په قبر کې
اوریمه، توفـــان یم، محـــرک د زلزلو یمه

ولس لرم، وطــن لرم، ماضي او مستقبــل لرم
بهنده تاریــــخ یم، مـــؤلد د حـــادثو یمه

لاس د تجـــاوز ته د هیـواد په هره پیڅه کې
تنــدریم، سېلاب یمه، برېښنـــا د آسمانو یمه

تـــوره دغضب یم دښمني د د ښمنـــانو ته
خپـــلو سره خپل یمه شـــــکره د شودو یمه

څوک یمه؟ سپایي د آزادۍ او افتخـــار یمه
زوی دلـــوی افغان او قهرمان د معـرکو یمه

نوي ژونــد ته لارکـــوم له نویو ارمانو سره
ځوان یمه، افغان یمه، هادي د قافـــلو یمه

# ځوانانو ته

په دې بــاغ کې نه قمــري شته نه بلبـل
نه يو بـــوټی د گيـــا شته نه د گـــل

نه د ژوند سنـــدره خېـــژي له ربابه
نه دچـــا په چـــا خنــــدا شته نه ژړل

په ترميـــم د دغې وراني ميخـانې کې
لاس مات شوی د تاريــــخ او تحــول

ساقي مـــالره يوهسي مى تيـــارکه
چې پې هېـر کړم که تړل وي که وژل

هغه باغ چې د باغوان له وينو روغ وي
هلته نه ښـــايي مستي او نه خنـــدل

گـــلان ندي دغه ويني د باغــوان دي
چه هرلـــوری ترېنه خېـــژي جل او بل

د بلبـــل د طبعې ساز کـــله منى شي
په دې جــاله دفســاد کې اوسېـــدل

هره ورځ کـــام ته را څرمه تبــاهي ده
يا زنـــدان دی، يا ځنځيـــردی، يا تړل

دغه زوړ زور چې وطن يې ويران کړی
دا د ځـــوان نسل طــاعون او يا اجل

دا بـــــوډۍ چې په افسـون د تېرې ژبې
وينـــې زبېښي د اولس په چـــل او ول

څــو په تـــوره لــــري نشي له وطنه
وطن كـــور د استبــداد دی يا غوجل

د وطن ځـوانان به هېڅكله ښاد نشي
څـــو ونه مني په وينـــو لمبېـــد ل

# توفاني ژوند

لېونی کړمه ارمانو ارمانو
ځان غولوم په ترانو ترانو
د ښکلي عرقوم په پیمانو پیمانو
رقیب ظالم او زورور دی ځکه
یار لټوم په بهانو بهانو
د محتسب او د ملا له وېرې
شپې تېروم په ویرانو ویرانو
اې د قوت مغروره مه سپکوه
رندان په څیري ګرېوانو ګرېوانو
یارانو ژوند په شرو شور کې ښه دی
لکه څپې د توفانو توفانو
یارانو مړ شوم د مستۍ له زوره
ما ګرزوي په میخانو میخانو

# د عصر لورته

ستا په هره كـــــرشمه كې نوى ســوز او نوى ساز دى
نوى درد دى، نوى شور دى، نوى طرز او نوى راز دى

ستا دې نوي سوزو سازته بې تعبيره شوو شعــــــرونه
ځـــــكه ستا دا زلمى حسن له زړو نه بې نيــــاز دى

نه دې زلفې په مــــــلا زانگې تر ورنو او زنــــــگنونو
نه دې ستر گې تورې كړې نه دې ستر كې اعجــاز دى

نه دې رم تېـــــرو ته ورته ، نه دې چم هغسې شان دى
نه دې هسې وړ انجــــام دى، نه ده هسې وړ آغاز دى

اې دنوي عصـــــــر لورې ، چې ســــاده يې سر تر پايه
په دې واړه سادگۍ كې دا څه رنګ او څه انداز دى

# دعصر لور

اې دنوي عصر او زمانې لورې !
څه غواړې او چاپسې آواز کوې ؟
اې د هندوکش دلوړو غرو زرکې !
بيا څه ابتکار او څه اعجاز کوې؟
زړه دې راته ښکاري نوی شور لري
ځکه کرشمې د سوز و ساز کوې
دود دا سارت تالا کول غواړې
نويو ارمانونو ته پرواز کوې
عصر او زمانه واړه غوړونه شوو
ته چې د دردونو امتياز کوې

# ستا لپاره...

زه چې تل د ژوند ترخو غمونو ژړولی یم
زه چې ناکامیو بد مرغیو کړولی یم

زه چې خپلو هیلو کباب کړی عذاب کړی یم
زه چې هر ظالم لکه یتیم غوندې وهلی یم

زه چې د هر مار او هر زمري د خولې طعمه یمه
زه چې هر نامرد د جفاغشو ته تړلی یم

زه چې لکه دروی د هر شپون ترجماني کوم
زه چې هر محروم خپلو دردو ته غږولی یم

زه چې د قام فقراو ناپوهي د سپېلني په شان
هره ورځ په تېغنه دتورونو اړولی یم

زه چې د ناوړه زمانې په هره لوبه کې
سل وارې په مخ باندې لوېدلی درېدلی یم

ما داهمه واړه ستا په مینه کې زغملي دي
اې گرانه هیواده! ستا لپاره مې منلي دي

# د مينې ژړا

په ما تنګ کړل زمانې سحر او شام خپل
ته اې مسته ساقي مه سپموه جام خپل
د بلبلو چغېدو ته سوځم سوځم
چې ويلای شي ګلونو ته مرام خپل
دا چې شور او شاعري يې را نصيب کړه
زه په خپلو سترګو ګورم سرانجام خپل
د ډېوې اوښکو ته ولې حيران ګورې
عشق له خپلو لمبو اخلي انتقام خپل
چې د مينې په ژړا يې آموخته کړم
ما اخيستی له غمونو نه انعام خپل
تر هغو به خپلې اوښکې پاکې نکړم
ځو له خپلو اوښکو وانخلمه کام خپل
ګوندې يار له درانه خوبه را بيدار کړي
مالېږلی د سپېدو په لاس پيغام خپل

# كاشكې زه عاشق واى

كاشكې زه عاشق واى ديار وره ته مې ژړلاى
ما ورته ژړلاى، رقيبانو را شړلاى
ما ورته له سترګو مرغلرې بهولاى
دې راته خندلاى ، په خندا يې څورولاى
زه په وچو دښتو او كمرو كې پسې تللاى
دا لكه هوسۍ زما له سيورې تښتېدلاى
ما لكه پتنګ دا په شغلو كې لټولاى
دا زرينه وړانګه واى او نه نيول كېدلاى
ما لكه ساحل واى خپله غېږ ورته پرانيستې
دې لكه څپه هره شېبه په مخ وهلاى
كاشكې دا پښتون زړه مې يوې پېغلې تمناته
ګونګ واى له حيرته لكه پانړه رپېدلاى
كاشكې ديوې مستې په زلفانو كې وښته واى
باد دسباوون ديار په شونډو رپولاى
هر څه چې واى واى دې خو له دې سكونه خلاص واى
لېږ څه خو ځېدلاى ، كړېدلاى ، چغېدلاى

# زنداني آشنا ته (۱)

بوی د کبـــــاب جګ دی له ګـــــو ګله د یا را نو
بیا چپـــــــرې چا زړه ا یښی په ا ور د انقـــــلا ب
خو ځي د اجمـــل په زولنـــو کې د غیرت چیغه
عقــــــل د پښتون ته ور کـــــوي نوی شتا ب
زوی د آزادۍ دانقـــــــلاب د مو ر په تي پورې
لولي په خـــــا پوړو کې د سرو وینو کتـــــا ب
ا یل به زمـــانه شي خا مخــــــا همدغه طفل ته
رسي به دا طفــــل مر حــــلې ته د شبــــا ب
دو اړه دښمنا ن دي پاکستـــــا ن دی که فرنګ
توره خوشې نکړې چې څو پا ک نشي حسا ب
خـــلاص به تربنه نشې اې پښتونه په زاریو کې
ګــــــرزي په خا شا کو کله مخه د سېـــــلا ب
سر د ا ستعمـــــــا ر د مار پخـــوا تر چیچو وځپه
وخوځه لا وخت شته خپل سنــګر که انتخا ب
ګډې زلـــــزلې کړه ددښمن په زنـــدا نونو کې
کوز کړه د غاصب زړه ته د تورې اضطرا ب
جا ر دې شم، صدقه دې شم، قربـــان دې شم
پام کړه خوشې نکـــړې سره کړۍ د انقلا ب

---

۱ ــ دا شعر هغه وخت ویل شوی چې د پاکستان حکومت د پښتنو د سیاسي مشرانو د عمومي ګرفتارۍ حکم وکړ.

# وروستۍ خبره

نا مېنده زړه مې انتظار باسي
ما غزه مې جور دخمار باسي
سترى ستو مانه آزرده مړوندمې
جفا درزم او افتخار باسي
زړه چې دردمن شي خو نارې به وهي
سېلاب چې وخوځي خو لار باسي
درقيبانو سر په سر ظلمونه
موږ مرحلې ته د قمار باسي
ساقي راواړوه کاسې دميو
نېشه مې تمه د ديدار باسي

اې له عالمه آزرده پښتونه
اې وير ځپلې غمزده پښتونه
پخپل وطن کې د پردو مزدوره
د آزادۍ په نوم برده پښتونه
ستر گې لمبې وهي چې تا ته گورم
اې غولېدلې اې ساده پښتونه
دژوندانه له سيره پاتې شولې
په درانده خوب کې بيهوده پښتونه
کله به پا څېږې مزل به کوې
اې د مرگي په خوب ويده پښتونه

په زولنو کې به حيات څه وي
د اسير قوم به صفات څه وي
سر چې جنون د آزادۍ نلري
د داسي عقل به نجات څه وي
که کام بې عقله ، بې شعوره وي نو
فرق به د زهر او دنبات څه وي
په غلامۍ کې به پښتون څه کوي
ددې پښتون به ثمرات څه وي
آيا پو هيږې د وطن بچيه
چې په پرده کې به نيات څه وي

# له زماني سره يوځای

تګ چې له شتـــاب د زمـــانې سره همـــراز نه وي
ژوند کې چې دردونه نه وي، سوز نه وي ګداز نه وي
چېرې چې ميـــــلان پورته آسمان ته د پر واز نه وي
ولس سره چې لار نه وي، انجام نه وي، آغاز نه وي
داسي يوه فضا کې د خپل ځان خاورې کول خوشي
درد خوشي، آرزو خوشي، دفـــکر خوځول خوشي

ځوان لره چې ننـــګ لري د سر فـــدا کول څه دي
تورې د پښتـــون ته د کـــړيو مـــــاتول څه دي
عقل او تدبيــــر ته د کامـــونو خوځـول څه دي
خلــــکو ولسونوته دغـــــرونو لـــړزول څه دي
سر که چېرې سر وي خو نشان دافتخـــار دې وي
ننګ دې وي، غيرت دې وي، دتورو ياد ګار دې وي

اې ګـــــرانه پښتونه چې مـــاضي او مستقبل لرې
بهنـــده تاريــــــخ سره نړۍ ته راوتـــــل لرې
پام کـــــوه بيدار شه چې په مخ کې لامـــزل لرې
حق ثابتـــــول لرې، دتورو خــــــوځول لرې
ستــــــا ژبه، تاريخ او بېل هيــواد واقعيت لري
ستــــــا ادب او دود ځــانته وجوداو حريت لري

ته څنـــګه زغمای شې چې مـريی شې له پښتو سره
خـــرڅ شې له ولس او له تاريـــخ او له زانـګو سره
بېـــله خپـــله لار کړې له پلـــرو او له نيـــکو سره
نه نه ، داسې نـــدی ، ته پښتـــون يې له پښتـو سره
ستا په غـــرو کې نغښتې زمـــانې غېږ قوتونه دي
ستا له خمبـــرې سره اخشلي توفـــــا نونه دي

پام کــــــوه زلميه چې نړۍ په خو ځيـــــــدلو ده
لر اوبر کـــــــړۍ دغـــــلامۍ په ماتېـــدلو ده
عقـــــل دانسان ته زمـــــا نه په رپېـــــدلو ده
نور دآزادۍ نه بنــــــــدګي په کتېـــــد لو ده
ته داستعمــــــار پاړو ګـــــرانو غولـــــولی يې
واک يې درنه وړی په نطفه کې يې وژلــــــــی يې

# دآزادۍ وږمه

شپه دځپـــلواکۍ وه په چمن کې نځېـــــدمه زه
مست ومه بېخـــوده هرې خوا ته ړنګېـــد مه زه
لاس مې لګــــــولي وو د ستـــورو په زري ځنو
ورو ورو له سپوږمۍ سره اسمان ته ور ختمه زه
غـــــلی مې نظر د ټپې شوي پښتـــون لور ته ، ته
پټ د زړه دننه ، پخپـــــل اور کې سوځېدمه زه

زړه ته مې ځپه ځپه غمجن شــــــاني آواز راته
جوش د خوشالۍ کې مې غـوږو ته نوی ساز راته
شپې سره سړې وږمې راوړی بـوی د وینـــــو و
روح د ابا سین څخه یو نوی سوز و ســاز راته
ستورې ځلېـــدل او شپه روانه په ښـــار باندې
ما ته د اجمـــــل له زړه نه هسي یــــو آواز راته :

اې د آرزو ګـــــانو ، امیـــــدونو او اسرو ربه !
وسپـــــړه او وسپړه ، زمـــــا دردونه وسپړه !!
اور مې که، لمبه مې که، ایره مې، لو ګی مې که
وسومه او وسومه ، زمـــــا اورونه وسپـــــړه
لیک بندي ، وینا بندي، لیدل او اورېدل بندي
لاس د آزادۍ نه دا چـــار خېـــځ بندونه وشېړه

ځوان یم هوښیار یم ، ددې لارې قربـــاني مې که
اور را بانـــدې بل کړه خـــو مشعل د آزادي مې که
شور راکه ، وفا راکه، مستي راکه ، گـــرمي راکه
سېل د آزادي مې که ، قوي او توفـــاني مې که
باد مې که،برېښنا مې که، څپه مې که ، دریاب مې که
فخـــر د جهاد راکه ژونـدی جـــاوداني مې که

بې له آزادۍ نه دا ژونـــدون څه دی جهان څه دی؟
نوم دسړیتـــوب او د شرف او دوجـــدان څه دی؟
توره ترژمۍ د ا ســـارت چې غوړېـــدلې وي
هلته فـــرق د خره او دغـــوایي او دانسان څه دی
بل که یا څـــراغ د آزادۍ چې شریف ژونـد وکو
وسوځه یا ما زمــا د ژونـــد دغه سامان څه دی؟

وینـــې مې را ا یشي په رگـــو کې ستنېدی نشم
هیـــلو سر اخیستی زه مـــخ ته درېـــدی نشم
مټ مې په ځنځیـــر کې د کړیو ماتول غواړي
نور په دې ننگینه اسا رت کې اوسېـــدی نشم
مات کـــړه ځنځیرونه کنه گله به محشرونه کم
بوی د آزادي را باندې لـــگي تمبـــدی نشم

# د آزادۍ شپېلۍ

اې شپېلۍ خوږې شپېلۍ زما د ترانو ژبې
اې درتل شویو، ځپل شویو او سپلو ژبې
اې د کاروانیانو، لېر بنو او ښبنو ژبې
اې په تورو شپو کې دچوپیا دعظمتو ژبې
اې د ځوان شپونکې د بې تعبیره ارمانو ژبې
اې د بې پناهو یتیمانو د سلګو ژبې
نن د خدای لپاره زما د زړه پاسباني وکړه
زما د مضطربو ترانو ترجماني وکړه

اې شپېلۍ خوږې شپېلۍ زما دردونه ووایه
ووایه چې سوځم دا رسوا دردونه ووایه
وې ښیه هغو ته چې آرزو لري احساس لري
یو یې سه افشایې کړه دا پټ رازونه ووایه
سوځې مې رګونه د دردونو په سازونو کې
چېرې کوم دردمن ته دا رنګین سازونه ووایه
ور دې کړه نغمو ته بیا رنګونه د دردو زما
ور دې کړه دردو ته بیا خوږوالی د نغمو زما

سوځې مې هلوونه یو علاج زما د دردو وکه
یوه ښکلې چاره زما د سرکشو ارمانو وکه
زما له فریادو سره ملګرې کړه نغمه خپله
ویښ که دغه خلک یو تدبیر د پښتنو وکه

دې جامدو غروته حرکت ورکه، قوت ورکه
زموږ سره ملـــګرى شه مـــــلا تړ د زلزلو وکه
پر پړده دتيري او تجاوز سنـــګرې ماتې شي
پر پړده چې د ظلم او استبداد ککرې ماتې شي

يو سه زمــــا دردونه زمــــا له بلنده لمبو سره
زمــــا له تندريزو خوځوونـــــــکو ترانو سره
وې غــړوه، وې رپــوه،وې خوځـــوه، وې لـوله
زما له خـــون شريکـــو خپلو وروڼو پښتنو سره
زما له ګــــرېوان څيرو، پښو لـوڅو بوټېنو سره
زمــــا له بې پنــــاهو، بې ټاټـــوبو او ښبنو سره
ور شه د پښتون قــام له دې غــرو رغونو پا څـوه
يو ځل داويده زمــــرى له دې خـوبونو پا څوه

خوب نه که راويښ شو په زلـــزل به زندانونه شي
لړزند به په وينــــو کې واټـــــونه او ښــارونه شي
جوړ به هري پوراومونت ګمري کې محشرونه شي
مات به په پښو د انقـــــلاب کې ځنځيـــرونه شي
او ښـــکې د مظلوم به بارانــونه سيـــــلاوونه شي
غـږ د آزادئ به توفـــــانونه تنـــــــــدرونه شي
لوبې سختې ندي غيـــــرتمنـــــوته له سر سره
سر غـــوڅ شوى ښه دى نه دنـورو له افسر سره

اې شپېلۍ دا او ښکې زما په مخ باندې شعرونه دي
دا زمــــــا د دردونو ويلي شوي تعبيـــرونه دي

زه پښتــون یم او ښـــکې مې د یأ س د ژړا ندي
دا زمـــا له احسا سه را وتلي پیغــــــا مونه دي
نه نه زه غلط شوم دا سر کشه توفـــــــا نونه دي
ډوب به کړي دښمن دا نافرمانه سېـلا وونه دي
سم به کــــړم دا سېـــل ددښمن دا ستعما ر په کور
یعنی د غـــا صب د د بد بې او اقتـــــدار په کور

درد زمـــا، آرزو زمـــا، اسره زمـا، ارمان زمـا
دا ښــــکلی جهـــان زما، د شعر گلستـــا ن زما
عشق زمـا، وفا زمـا، اولاد زمـا، بنیـا د زمـا
واړه دې قـــــربان شي تر آزاد پښتونستـــــان زما
هـــر داغ دسینې به مې د گـــــلو غوټۍ وسپـــړي
دا دغـــم نړۍ به شي جنت زمـــا بستـــا ن زمـا
چېـــرې که برېښنـــا دآزادۍ پښتون ته وخنــــدل
چېــــرې که پښتـــــون دا ستعمار په وینـــو ولمبل

یو سه زما سنــــد رې دپښتون د انقــــلاب پلو
اې خــــوږې شپېلۍ دانقلاب او اضطــــرا ب پلو
زه له دې بې خــــونده عافیته بېـــــزار شوی یم
بو مې زه دتنـــــد ر، دتوفـــا ن او د سېــــلاب پلو
ډال مې که، خنجر مې که،سنگر د معرکو مې که
رب د پـــــــا ره بو مې زه دوینــــــو د تالا ب پلو
ژرنده د آسمـــــا ن مې که د سر په کاسه و گرزي
زه به گـــام اوچت کړم د میـدا ن دامتحـــا ن پلو
دا زمـــا قسم دی چې به مـــــــرمه له پښتو سره
یا به آزاد ژونــــد کـــــوم له ټولـــو پښتنو سره

# د آزادۍ لار

ستـــــر گې بیا یېتا به شوې تمـــــــا شو ته
قلــــــم بیا ځغــــــــلي له شـــوقه ترانو ته

بیــــا په شونډو رابهېږي مــــــو ج د مینې
بیــــا مې زړه لــــــکه ما شوم ژاړي لیدوته

د چمن هـــــره گیــــــا تر گــــــل تازه ده
چې مـــــخ ږدي د ښـــکلو نجونو قدمو ته

زړه مې بیــــــا دچا دزلفـــو په دام کېووت
چې رپیــــــږي لـــــکه پاڼه ننـــــدارو ته

سر بازي دعـــــا شقي لومــــــړی مزل دی
مټ مې ځـــــــکه پاریدلی هنـــــگا مو ته

دوطن بوټي ځوځـــــــان ، کانې او پر ښې
په نڅـــــــــا دي نویو نویو ارمــــــــانو ته

د ځــــــــوانانو په اسرو او امیـــــــدو کې
سر جګ کړی زما شعـــــــر اسمـــــانو ته

د هیـــــواد خـــــاوره به جـوړه د جنت کړو
که غوږ کیـــــږدو ددې عصر زمـــــزمو ته

د هیـــــواد ځوانان دې هله افتخـار کړي
چې لار وبـــــــاسي وحـــــــــدت د ولسو ته

سر به څه کوې چې ننګ غیــرت یې نه وي؟
لاس به څه کوې چې مات وي خوځېدو ته؟

هغـــه لاس او هغه سر د افتخـــــــار دي
چې په مـــــخ ځي سر منــــزل د رسېدو ته

ځوانه ګـــوره چې فرصت در نه لاړ نشي
تـــورې ندي پاکېـــدو او ځـــــړېدو ته

زمــــانه په هر قـــــدم امتحـــان غواړي
لاره بـــــاسي خونـــړيو زلـــــزلو ته

آزادي د زړورو ملـــــک او مـــــال دی
په زاریـــو ورکـــــړه نشي ملتـــــو ته

نېـــکمرغي د هغه چا دشمــلې ګـــل دی
چې سر کېږدي دخوني زمـــري غابنو ته

د افغــان هیـــوا ده ټـــول ملت ولاړ دی
غېــږه پرانیزه چې پـرې دې وزو پښــو ته

ستا تر هر بـــوټي به سل ځله قــــربان شو
څو چې وینه د پلــــــرو راځي رګـــو ته

که زمـــوږه سر او مــــال هم پکې لاړ شي
لار به پرانیـــزو پیــــــاوړو نهضتو ته

سر به جار کړو ستا تر هرې لوېشتې خاورې
که محـــــتاج شې قربــــانیو د سرو ته

دغلیم ستر ګې به وباسو په ګوتو
که کړې شي ستا دلوړو غرو سروته

که تاجک، که هزاره دی که پښتون دی
ارمانجن دی ستا ځلانده ورځو شپوته

په ډاګو به دې دګلو توفان جوړ کړو
په لېمو به لاره وکړو په مخ تلوته

واړه یو یو، امتیاز راسره نشته
یوتر بله قربانېږو رسېدوته

دافغان ولسه ورور اوسې ترتله
زیان دې مه رسه وحدت دوسوته

# لويه لوړه هندوکشه

لويه لـــوړه هنــــدوکشه     د شـــا هين او بـــاز وطنه
د هېـــلمند او آمــــو پلا ره     د توفـــان او سېـــل مينه
دا شيـــا د غــــرونو تـــاجه     د پښتـــون د قـــام عدنه

آ خوا ، دې خوا ، ستـا په تړو وريځې لړې راتاوېږي
يا د پښت دقام غيرت دی چې په تابا ندې غوړېږي

د هېـــلمند په غور ځنگو کې     د آمـــو په توفـــانو کې
د کــــوکچې په نارو چيغو     د اټک په سېـــــلاوو کې
د مرغـاب دسين په مو ج کې     د هـــــري په ترانـــو کې

ستا د لوړو کاڼو پر ښو يا دا ستان يا ترانې دي
يا د پکت د قام د تېرو په ويا ړنه افسانې دي

ستا په لـور چې مې نظر شي     له غيـــــرته ليـــونی شم
ستـــــا د تړو له جنــــونه     په غـــرو گـــرزم غرځنی شم
دغيـــرت لمبې راتـــاو شي     ستـــا په پښو کې سپيلنی شم

په تا وياړو ، تا به ساتـــو د پښتـــون تېـــر سنگـــره
د تاريخ د باغ ښايستـــه ، د دښمن مخ تــــه سپـــره

ستا له شا او خـــوا روان دي　　　نهضتـــونه په ځپــــــــو کې
غواړي نوی پښتون جوړ کړي　　　ستـــــا په پښو او قـــدمو کې
ستــــا د مست باد له جنـــونه　　　وينـــې ايشي په رګـــــــو کې

دا چې وزي زما له خولې نه، نه پــــــو هېږم ترانې دي
که زما په ســوي زړه کې ، ستــــا له عشقه زلزلې دي

خانده، فخـــر کوه، ويا ړه　　　را روان کړه سېـــــــلاوونه
په غږا کـــــــــــړه پښتنو ته　　　د ژونـــــد نوي ربـــا بـــونه
چې کړم ډک د ستا له عشقه　　　نوي نوي کتـــــا بــــــونه

وياړه وياړه چې راغلی په پښتـــون نوی شبا ب دی
په هر فکـــــر او هـــــر نظـــر کې نوی نوی انقلاب دی

# دکوکچې په غاړه

د ښکلي بدخشان په پسرلي کې له هر لورې
دګلو په ځپـــــوکې د بلبلو هنګامه وه
دعشق او دښايست او دښکلا په فيض آباد کې
دستورو ، دآسمان او د پېرووښو ننداره‌وه
د لعل او د لاجبر ، او د سرو زرو په‌وطن کې
روانه يوه له سوز او درده ډکه ډرامــه وه
له موجــه دکوکچې نه راوتلې زلزلې وې
دتورې شپې په زړه کې دلمرونو نښانې وې

د ښکلي طبيعت او ښايسته آسمان دلاندې
په ساپه، بې غباره ، جنتي غوندې هوا کې
دغرو له لوړو څوکو، دګلونوپه‌غورځنګ کې
د مست او لېوني سين د موجونو په‌ګډا کې
د باد له ترانو سره چې ستائې د پامېر و
د ژوند په زمزمو کې، په خندا کې په ژړا کې
د سېل په څېر راغلې له هر لورې افسانې وې
دګران وطن دخلکو هېرې شوې خاطرې وې

له باد او له وږمو سره موجونو دکوکچې ته
راغلي له پامېره داستانونه دتـــوفانوو
دواورو په اوبو کې يو جهان دخاطراتو
له لوړه هندوکشه بدخشان ته را روانو

په هره ترانه کې چې کـــوکچې به سر کوله
کشل سوی په خوږو خوږو نغمو کې تللی شان و
ویدې په هره پاڼه کې پېړۍ او زمانې وې
په تېرو زمانو کې د پلرونو خاطـرې وې

له بلخه، له هــــرې نه، له زرنجه، له بامیانه
له هر لورې راغلې افسانې وې په وږمو کې
ښایست و، پاکه مینه وه، وحدت د پرګنو و
تاریخ تنۍ پرانیستې د زمان پــــه ګفتګو کې
په بهنده کوکچه کې چې راوې د هندوکش ده
درام د کنشکاو ښودل شوی په مـوجو کې
راغلې فیض «آبادته» د یو والي قـافلې وې
د ټول افغان ملت، د پاچېـدلو زمزمې وې

په زړه کې مې له درده یو توفان په خوځېـدو و
په یوه څاڅکي دوینو کې جهان په خوځېدو و
ژوندۍ تانده وږمه، له اې خوا دې خوا چلېدله
زلمی او منور افغانستان په خوځېــدو و
د عصر په خـــوږو او خــوندورو پیغامو کې
له جرمه تر پامېره، بدخشان په خوځېدو و
د تالندې په چیغو کې، د نوي ژوند نارې وې
د نـــویو یرغلــونو د لامــونو هنګامې وې

راغلي دې محفل ته له هر لورې شاعران وو
زموږه د پښتـــو او پښتنوالې راویان وو

شیدا و، ما شو خپل و، د ختکو کورنۍ وه
ټول شوي په ویاړنه د بابا عبدالرحمن وو
زموږ ه په خو بونو، غفلتونو یې ژړا کړه
له ستر ګو یې داوښکو سېلاوونه را روان وو
په شونډو درحمان کې د دردونو زمزمې وې
تاو شوې په غیرت د پښتنوا لې کې لمبې وې

خوبونه کله کله ربه څومره خوندور وي
یا ښایي چې زموږه په دردو باندې خبر وي
یادا چې زموږ په هیلو او ناپا یه هوسو کې
د صبر او سربازۍ او د وفا دغه اثر وي
یا فصل د بها ر به د ګلونو په توفان کې
را وستی زما خیا ل لره بدل غو ندې نظر وي
سبا له خوبه پا څېدم نه چنګ او چغا نې وې
نه ښکلي فیض آباد کې د جشنونو نشانې وې

## د وړ کتوب ارمان

بېړۍ د ژوندا نه مې د گرداب په لورې درومي
خبرې مې د موج او د سېلاب په لورې درومي
بنا مې د آمالو د خراب په لـــــــورې درومي
د درد او بدمرغۍ او د عذاب په لورې درومي
نظر مې غلی غلی د کتاب په لـــورې درومي
د درس او مدرسې د اضطراب په لورې درومي

بزگر وای ، بې خبر وای ، پراخې د ښتې مې کرلای
د غرو د څوکو شپون وای ، وري او مېږې مې پولای
مزدور وای په غــــرموکې مې ډبرې ماتولای
بندي وای په زندان کې مې مېچنې گـــــرزولای
خو کاشکې د قلـــــم په ژبه نه وای پوهېدلای
د ژوند دراز کتاب مې هـــــر گز نه وای اړولای

شپېلۍ چې د شپانه د غرو په تړو کې غږېږي
آواز چې د اوښه په پراخو د ښتو کې خورېږي
لنډۍ چې د بزگر له ساده فکر نــــه راخېژي
کوچیان چې د کېږديو په اړخونو کې نڅېږي
افسوس مې له دردو سره له زړه نه را خوځېږي
له اوښکو سره گډ شي تورو خاورو ته بهېږي

نا يا به هلكتوبه چېرې لاړې چېرې لاړې
په تېرو ورځو شپو کې چېرې ګرزې څه شی غواړې
په هيرو زمانو کې په چا خاندې په چاوياړې
غمونو ته دې پرېښو دم پخپله رانه لاړې
په سترګو کې مې ګرزې کله خاندې کله ژاړې
ورو ګامونه اخلې د تاريخ لمنه نغاړې

احساس مې غلی شوی دما ښيو په اړخو کې
ايمان مې خيرن شوی په درواغو سلامو کې
بې خونده، بې مزې شوم ، په چوکيو په مېزو کې
پښتو مې ورکه کړې په فاسدو طبقو کې
اورونه دې سوځل کړي په موټرو په قصرو کې
ګران شوی ماته ژوند دی په دې خلکو په سړو کې

سپوږمې مې مزه نه اخلي دګلو له وږمو نه
غوږونه مې خوند نه وړي درباب له ترانو نه
احساس مې پردی شوی د ښايست له پلټو نه
رټلی يم د ښکلي طبيعت له ننداروнه
شعور مې ستومان شوی د دې عصر له پېرو نه
خيال مې مرور دی له دې نويو شازلمونه

# دچونغرتراني

چو نغر دلا يق د شا عرا نه ا لها مونو لومړنۍ زا نګوا و د با ختري آريايا نو له تا ريخ سره يو تړلی غر دی .«سرخ کوتل» چې د کو شا ني دورې د مکشوفه ودانيو او ايرانوونکو تا ريخي آثارو له کبله د نړۍ په لرغون پېژند نه کې ځا نګړی ځای لري دهمدې چونغر په لمنه کې پروت دی.

چونغر د جغرا فيا يي مو قعيت له پلوه د بغلا ن د ولايت د پلخمري په ولسوالۍ کې ، د غوري دشتې نا وې لوېد يځ ته ، شما لا جنو با غوړيد لی دی . د لايق د استو ګنې کلی «بالا دوري» دکرکر د غرونو د لړۍ په لوېد يځو لمنو کې ، چونغر ته مخا مخ پروت دی.

پر طبيعت مين لايق دزده کړې په دورا ن کې ، د رخصتۍ وختونه پخپل کور کې تېرول چې مخا مخ چونغر ته پروت و. هغه دکور له خلا صو کړکيو څخه په بيلا بېلو موسمونو کې د چونغر د کمال او جمال مختلف حالا ت څا رل او د احساس او الها م د خپلولو له لارې يې د ژبنيو تصويرونو د جا دو ګر هنر تجربه پخوله . په دې کې چونغر د پووندو پښتنو له منځه دغه را څر ګند شوي شاعر په ځان کې را ونغاړه او هغه يې دخال او خط د ستا ينې له محدودې دا يرې څخه را ويوست او د طبيعت نا پا يه سمندر ته يې ور تېل وا هه . د هغه په ژبه يې دستورو ، سپوږمۍ ، غرونو، سهمجنو شپو، توفانونو، او د وريځو د غور ځنګ سرودونه جا ري کړل . هغه يې په ما ښامونو او سحرونو کې ولمباوه او د زړه په سر يې دانسا ن د مينې دا غ ور کېښود او په دې ډول يې هغه ته د عاشقانه فريادونو او له انسا ن او طبيعت سره د نا پايه لېوالتيا ژبه ور زده کړه . شاعر په چونغر مين شو او په هغه کې يې د خپل وطن بې سا رې طبيعي ښکلا او د تا ريخ ايراوونکې خوا رق احساس کړل او

داسي په چونغر کې ويلي شو چې دعمر د کمال په پوړۍ کې هم لا په هغه کې ډوب دی.

ا مين «ا فغا نپور» چې له لايق او دده دآثارو له روح او جو هر سره تر هر چا ډېر بلد او محشور و، ويل به يې «...چو نغر دلايق د شا عرا نه الها مونو «طور» دی، هغه دارادت له مخې، دخپلو شاعرانه الهامونو لومړنی اثر ددغه ستانه طورپه نامه، ونوماوه.» خو د چونغر له ۳۲ ترانو څخه يوا ځې ۸ ترانې په لومړني دفتر کې چاپ شوې دي. له پاتې ترانو څخه ۱۲، ۱۳، ۱۸، ۱۹، ۲۱، ۲۲، ۲٦ او ۲۷ په «کيږدۍ» کې (چې دافغاني زلميانو په همت د باندې خپره او وطن ته په پټه راوړل شوی وه) چاپ شوې وې.

لا يق وايي چې نا خپرې شوې ترانې دده دنا خپرو شويو شعرونو له يوه بل دفتر «سپېدې» او له ځينو نا بشپړو داستانونو او دده دياددا شتونو له ځيني دفترونو سره چې ده دخوندي کولو په مقصد د ګوند په مرکزي کمېټه کې خپل دفتر ته را لېږدولي وو، د ۱۹۹۲ کال دا پريل په پيښو کې د کارمل دپلويانو له لورې چې د شمال د أئتلاف په ننګه کې در بدلي وو، لوټ شول او لا تر اوسه د هغوی لورې نه دی معلوم. په هغوی کې د اسحق ننګيال يو اوږد شعر چې ما ته يې د نظر او سمونې لپاره سپارلی و او دده دفکري لورې او سبک تر ټولو اوچته نمونه وه، هم الونيا شو. لايق وايي کېدای شي چې نوموړې ترانې يا دهغوی يوه برخه دده په نورو يادداشتونو کې چې ده دبحران په شپو ورځو کې دلته او هلته د احتياطي کاپي ګانو په توګه خوندي کړيي وې، را پيدا شي، خو په داسي يو احتمال باندې ډاډه نه دی. دا وه د چونغر د ترانو او د چونغر د شعري دفتر د نومونې په باب يوه لنډه توضيح چې د لايق د شعر لوستونکې هغه مطرح کوي. نور نو دا تاسو او دا دچونغر ترانې:

# لومړۍ ترانه

اې د کرارو چوپو شپو چونغر !
ستا د درانده سکوت بلا واخلم
ستا د چوپیا تر سلو ژبو جار شم
ستا دعظمت تپوس له چا واخلم

ته چې پېړۍ پېړۍ ولاړ یې دلته
ډېرې قصې او خاطرې به لرې
د شپې له ستورو او پېروونو سره
راز او نیاز او زمزمې به لرې

زه ستا د تورو تپو شپو په زړه کې
د ناپیدا دردو سپړل غواړم
د یوه ځوان شپونکې له دروی څخه
د سویو هیلو اوربدل غواړم

کله چې ستړی شم د ښار له چیغو
د سحر ستورې ته پیغام لېږم
د ده په سپینو او زرې څڼو کې
ستا لوړو څوکو ته سلام لېږم

د تا په لوړو لوړو څوکو کې زه

د عشق او مينې ورک جهان لټوم
ستا په وريځو او په تا لند ه کې
د ابدي ښا يست نشا ن لټو م

کله چه زما د ژوند دېوه تپه شي
زما شعرونه به لا تا ستايي
پېړۍ پېړۍ به زما په مرګ وي تېرې
لا زما خوره به چونغـــر وايي

# دوهمه ترانه

اې دنيکونو او پلرونو کوره!
اې درنگينو خاطرو چونغره!
ستا هره تېره د تاريخ پاڼه
اې دلر غونو عظمتو چونغره!

په دغو شا او خوا درو کې وايه
ستا شازلميان او سر بازان څه شول؟
د هغو مېړو لمبو ايرې کومې دي؟
د هغه اور سمندران څه شول ؟

هغه بېباکه عاشقان چېرې دي
هغه دژوند ښکلي ليلا څه شوه؟
دتا دخاورې په قدم قدم کې
دعشق او مينې تمنا څه شوه؟

ستا په درو کې چې شاهان خوځېدل
اوس هلته هېره او مرگو خوره ده
ستا په ښارونو او ماڼيو باندې
شگه او خاوره د قرنو خوره ده

هلته چې پېغلو به سومـــا څکله
اوس يا گيدړې يا لېوان گرزي

د سرخ کوتل د ویرانو د پاسه
اوس یا غوا یي او یا اوښان گرزي

کلـــــونه زغلي زما نـــــه تښتي
او زه ستا څوکو ته حیران گورم
دپسرلي په ا نتظار شـــومه زوړ
لا ستا په پـــر ښو کې خزان گورم

ستا په کـــــراره او سړه فضا کې
چونغره زړه مې څو ناري غواړي
دژمي شپه کې چې سپوږمۍ خوره وي
څـــو دردوونکې ننداري غواړي

# دريمه ترانه

اې د ښکلا او د ښايست پلاره
اې د پېريو آسماني چو نغره!
زما د شعر په څپــو څپو کې
لېونی شويه توفاني چونغره

کله چې ورېځې ستا له تړو څخه
را اوچتېږي قــافلې تـــړي
ستر ګې زما د بدرګـــــو لپاره
د مرغلـــــــرو قـــا فلې تړي

د غوري سين چې نارې چيغې وهي
ستـــا د ستاينې تـــــرا نې وايي
د موج په ژبه د آمـــو سين ته
د تا لــــر غونې افســـانې وايي

ستا په سر ستورې سنر ګکونه وهي
زه وايم ما ته څه پيغــــام راکوي
زما نا کامـــــــو آرزو ګانـــو لـره
يو څه تسل او څـــه آرام راکوي

را ســـره وغـــږېږه جار دې شمه
چې سخت يوا ځې او تنها يمه زه

د یوې تـــــودې نارې په هیله هیله
یــــوه لمبــه د تمنــا یمه زه

ته خو لاښه یې چې د کاڼې جوړ یې
زما زړه غوښه ده دردونه ګالي
که د یوه شپون په پښه که ځوځ لاړ شي
لا یق یې دلتــــه بیا غمـــونه ګالي

# څلرمه ترانه

ستر ګې مې اوښکو نه توفان خوځوي
تو فان چې و خوځي خــــو لار باسي
چو نغـــــره څومـــــره به‌مې زړه وا يه
يـــــوې نا رې تــــه ا نتظا ر با سي

زما مغزو کې يوه غـــــوغا خوره ده
را نه سرېږي يو څــــــه اور راکړه
دا ډېـــوه ګی د تو فان توان نلـــري
ددې سا تلو ته څـــــــه زور راکړه

ستا په بادو کې يوه نغمه رارسي
نه پېږم څه وايي خــــــو شور لري
له يخـــــو يخـــــو اوسېليو ســـره
يو سوځـــــوونکی غلی اور لـــري

کله چې غم په ما غور ځن☐ راوړي
ته زما په شونډو کې خندا خوځوې
زما په سترې او ستـــــومانه زړه کې
مينه د ژوند او دبقا خوځـــــــــوې

که ته د تېـــــرو خا طـــرو پلار يې
يا دې په غېږ کې زمانې دي ويدې

زما د شعـــر په ناپايـــــه سين کې
د ژوند دفکر زلزلې دي ويدې

دا خا طرې او زلزلې به څه وي
که نوي سوز او نوی شور نلري
ډېووو ته هسي لو ګيدل څه په کار
که د پتن□ لپاره اور نلري

# پنځمه ترانه

څه را روان دي نه پوهېږمه زه
چونغره بيا دې په سر لړې ښکاري
د غم تر تورو تورو وريځو لاندې
تمام بدن دې دړې وړې ښکاري

گوره چې وريځې تو فانونه نشي
ستا په لمنه بزگـــــران پراته دي
د ساړه ژمي دبادونو وړاندې
بر بنډ او وږي يتيمان پراته دي

هغه د شپون دلوخو کور چونغره
طاقت د باد او د تــوفان نلري
څپرې وريځې دې خورې ورې که
د ژمي زغم دې بېوزلان نلري

کله چې ته د واورو تاج کېږدې
ساړه په خلکو يرغلونه کوي
دژمي تېزه او بې شرمه سې لئ
په بوټينو باندې ظلمونه کوي

کله چې واورې کروندې کړي پټې
زموږ په مځ کې زور دکار شي غلی

چېري چې غږ د زورور شي پورته
هلته خو تېره ده چې خوار شي غلی

لکه چې شپو کې د شپنو اورونه
د غره په شپولو کې لمبې وهي
زما نارام او مضطرب روح کې
ستا خاطرې هسې څپې وهي

که زمانې ستا سره لوبې کړې
ستا لوړ کمرونه که کلـــو ځپلي
زما تنکي تنکي او نوي افکار
د کونډو رنډو ا وسېلـــو ځپلي

# شپږمه ترانه

تښتم له ښار ا وله ښاریانو څخه
چونغره غبږ.کې دې یوه ځاله را کړه
په لوړو ترږو او کمـــرونو کې دې
خپلو شپنو ســــره یوه تا له را کړه

هلته به مینه او وروري شي پيدا
مرض د لوث او دفساد به نه وي
تر هرې تيږي او پيچومې لا ندې
وېره د دام او د صيا د به نه وي

چې شپه خوره شي ستا په لوړو څوړو
زه به د زړ کــــــو تـــــــرانې ا ورم
يا به ورځمـــــه په ورغالـو کې به
د زاړه شپـــون نه ا فسانې ا ورم

چې رمې وخوځي سبا را شي
زه به له لوړو نه سپېدو ته گورم
يا به د ځوان شپونكي نغمې اورم
يا به دستر گې راختو ته گورم

چې لمر را تود شي په كمرو كې به زه
ديوې څېړۍ سيوري ته ځان رسوم

د چینې یخې او رڼې اوبه به
سوي کوګل ته په امان رسوم

ما ښام به ناست یم په یوه لوړه ګټه
له سره شفق سره به رازوایم
یابه د دروي او شپېلۍ په ژبه
قصه د زړه د سوزو ساز وایم

ګرزم به ، خاندم به، مستي به کوم
د غره له زرکو او هو سیو سره
غلام د هیچا د غرور به نه یم
خیرن به نه یم غوړ ما لیو سره

خپلو سپېڅلو آرزو ګانو ته به
بې خونده شوی شرمېدلی نه یم
دورور تر پښو لاندې کوو سره به
لوړو ځایو ته رسېدلی نه یم

# اومه ترانه

اې دبادو او بارانو چونغره
اې د ږليـــو او سېلو رانگو
اې د تاريخ د تاړاکو شهيده
د ويدو شويــــو عظمتو زانگو

کله چې گورم ستا سپېرو تړوته
لکه يتيم ماشـــوم ژړا راځي
په تورو شپوکې ستاله پر ښو څخه
يوه آشنا غوندې نــوا راځي

همدا نــــوا زما په مړوايروکې
يوه بې تعبيره شان غوغاخوروي
زما په سترې او ستومانه زړه کې
يـــوه رنگينه تمنا خـــــوځوي

ته څومره خوږ يې دپلرو وطنه
زما دخا پوړو ورځو شپو وطنه
زما غوغا ستا له چوپيا نه پيدا
اې د الهام او تــرانو وطنه

څومره به ښه وای چې پخپله خوښه
د سين په شانې مې سفر کولای

په مينه مينه مې له هـــــره ځايه
ستا لوړو ځوړو ته نظر کولای

د بېدردانــــــو بېدردي به نه وه
زه به وم عشق او آزادي را سره
د تا دمينې په نا پا يه سين کې
و فا او هيله او مستي را ســره

سوځمه سوځمه د رب لپاره
يو خوندور شانې پيغام راکه
د ځو دردونو د ويــــو لپا ره
يو زرين مزی د الهام را که

# اتمه ترانه

یو غمځپلی شان ځګروی راځي
چونغره ستا له شګو خاورو څخه
سرې سرې نغمې را رسي پسې
ستا له بادونو او له واورو څخه

ښايي له سر د کنشکا څخه به
هوس د تخت او د ملکونو وزي
يا به حسرت د درست جهان دنيوو
د ده له زړه نه په آ هـــونو وزي

يا به په هغو ورارو بورو ژاړي
چې ده يې ورونه او زمن وژلي
يابه د هغو خلکو عذر کـــوي
چې ده په مينــــــه دوطن وژلي

يا بـــــه د ژوند په بې ثباته دوره
اوس پس له مرګه افسوسونه کوي
يا به په تل کې دنمجنو خاورو
د ورکـــــو خلکو تپو سونه کوي

يا به له دې اوږدې چوپيا وي په تنګ
زړه بې هوس د څو امرونو لري

يا به له خاورو راوتل غــــــواړي
مينه رغبت به د قصرونو لـــري

# باغوان ته

څومره هوسېږم دې تازه تازه ګلانو ته
دې نويو ځوانانو ته
ګوره اې باغوانه چې د تندې طاقت نلري
تاندې يې نازکې دي

ساته يې خاطرترڅو چې لوی شې غوټۍ وسپړي
لاندې رينښې وتړي
مينه د چمن يې په رګوپلو کې پلنه شي
بيا ګوره توفان درنګ

خوانه يې پلوځې او اغزي او ځوځان لري که
دا دښمنان لرې که
پرېږده چې آزاده هوا چم دجلوې ونيي
دې ښکلو ګلانو ته

کله چې د ګلو په څپو کې چمن وخاندي
يعنې وطن وخاندي
بيا دې زمانه په موږه هرڅه چې کوي کوي
بل ارمان به نلرو

# پيغام

تېر به شي کلونه ، مگر نه به شي
زما دغه رنگيني ترانې هېرې
محو به شي گور زما
کلی زما کور زما
مړ به نشي اور زما
تل به زه غړېږمه شعرونو کې له کام سره

دا دبېدردئ او ناپوهئ څپې
زما هنر او مينه غرقوی نشي
تل به دافغان بچې
پورته دباميان بچې
ښکته دسيستان بچې
لولې زما سندرې له آغاز او له انجام سره

زما ولس به يوسي هيوادونو ته
زما دترانو ښکلې رنگين گلان
تل به د پښتو ژبه
دا دلويو غرو ژبه
دغه د درنو ژبه
ساتي زما شعر له فکرونو او مرام سره

اې زما دځوانئ تودو تودو هيلو

ننوزئ دشعر ابدي كورته
يو سئ ولولې زما
پټې زلزلې زما
اوښكې قا فلې زما
وروستو زمانو ته ددې عصر له پيغام سره

# سورږ ژوند

کا شکې شرنګ د يوه رباب کې
يوه رنګينه ترانه‌واى
يا د يار د څنګو ول کې
يوه مسته شان څپه واى
يا د ښکلو په محفل کې
سوځېدلاى يوه ډېوه واى
کاشکې سترګو د يتيم کې
د سرور يو شغله واى
يا په زړه ديوه مايوس کې
يوه هيله يوه اسره واى
کا شکې درمند د ستم کې
بله شوې يوه لمبه‌واى
يا په سر د مستبد کې
نا سور شوې يوه دانه واى
نه دغه شوم نه هغه شوم
د ساړه ژوند بنديوان يم،
ګوره څوک به را نه خلاص کړي
دا بندونه ځنځيرونه

تورو وريځو غوړولي
په دنيا باندې وزرونه

ته به وايې چې خوځېږي
په آسمان کې دغم غرونه
د ښادۍ طلايي ورو ته
بيالوېدلي ځنځيرونه
هديروته ورته شوي
دا زاړه زاړه ښارونه
په غوږو دزمانې کې
غم سور کړي دي سازونه
غرسپېره، ببدیا سپېره ده
مړاوي شوي دي گلونه ،
واړه غم دی واړه غم دی
له دې غم څخه ستومان يم
مرگه راشه ماآزاد کړه
له دې تور ساړه ژوندونه

# د سليمان پسرلی

د سليمان په لوړو پرښو باندې
د تورو وربځو کتارونه خوځي
راته ښکارېږي د بهار په زړه کې
د پښتني مينې اورونه خوځي

بيا بهار راغی لېونی به شمه
د مستو نجونو خندنی به شمه
دلاله داغ به مې ساراته بوزي
خوب مې ليدلی غرځنی به شمه

بيا دوطن د د ښتو کانې بوټې
زما په سترګو کې ګلان ښکاري
د لمـــر دلاندې دشبنم ځل کې
درست کاينات او ټول جهان ښکاري

مغرورې پېغلې د پېکي د پاسه
د سرو ګلونو کتارونه اېښي
د هغه ځوان لېر به په زړه باندې يې
د سارانۍ مينې داغونه اېښي

د ژرنده ګړي د بچو په لاس کې
بيا د لښتيو زېړ ګلان ښکاري

په مړاوو مړاوو او سړو شونډو يې
تر خه ترخه موسکې څپان ښکاري

سر را ته ښکاري چې بهار بل دی
يا زما تنده او خمـــار بل دی
ليرې ترخې اوبه به څوک راکړي
په زړه مې اور دانتظار بل دی

يارانو لاره دسارا چېرې؟
ساقي تنګ شوی يم مينا چېرې؟
په دې بېخونده او سا ړه ژوندکې
يوه رنګينه مشغولا چېرې؟

# نا کا مه هیلې

اې زما نا کامه هیلو !
لرې لرې شئ له ما نه
هورې لریې په بېد یا کې
د غمونو په چوپیا کې ،
ما نا کام ته
ما بد نام ته ،
بدمرغي چیچي غا ښونه

اې زما زړه زړه لېونیه ، خندنیه !
نور مې مه سوځه بېځایه
د ځوانۍ له مشغولا نه ،
د گلرخو له وفا نه،
بې نصیب یم
زه غریب یم
چېرې زه ، چېرې عشقونه !

دا د هیلو کاروانونه ، امېدونه
چې بهېږي را بهېږي
خندوي مې ژړوي مې ،
غولوي مې ،غولوي مې
یا هغسي
یا دغسي
پاروي زما دردونه

# نا آشنا نغمه

دا څه آوا ز دی ؟
د چا نیا ز دی؟
پرده د سا ز دی
او که اعجاز دی؟
نغمه شراب دی زه شرابي يم
يا زه کباب يم دا کبابي د ه

خراب خراب يم
کباب کباب يم
د ساقي لا س کې
گرو په شراب يم
عمر تېرېږي يارانو گورئ
پيالې کړئ پورته چې نه ودرېږي

كاروان روان دی
زړه مې پرېشان دی
ويرژلی ژوند مې
په ماتاوان دی
نا مرا ده عشقه زه دې برباد کړم
زه دې بر باد کړم نا مراده عشقه !!

# رسوا مينه

سپوږمۍ دلوړو غرو له شا نه راخته راخته
سپينه رڼا په‌لويو دښتو خورېده خورېده
وږمې د گلو له عطرونو سره
شپې د شپنو له آزازو نو سره
نشې د ميو له جامونو سره
زما په لاسو کې ځنځيرونه دگناه اچول
توبه وه ماته

زه دنېشې له پيچ و تابه اوښتم اوښتم
دا دمچکو له گرميو تاوېده تاوېده
ماله سرکشو گناهونو سره
دې د ځوانۍ له هوسونو سره
له ډکو ډکو گيلاسونو سره
د وصل او مينې پر ښارونو چپاوونه وهل
حيا ويده وه

دا په مستۍ کې زماله غېږې رنگېده رنگېده
زه په سينونو دگناه کې دوبېدم ډوبېدم
له ترږيو ترږيو ارمانونو سره
له ښکلو ښکلو عذابونو سره
دزلميتوب له کړاوونو سره
د سباوون رڼا دستر پرده وچيرله
مينه رسوا شوه

## د ارغوان سندره

دا د ګلو امتحان دی
که په غرونو کې توفان دی
که د ګلو ننداري ته
سر جګ کړی ارغوان دی
چې بل فکر او نوی ذوق
نوی شور او نوی شوق
زما په شعر کې نخښېږي

د سینونو په نغمو کې
د بهار په ترانو کې
د عشاقو په سینو کې
د ګلونو په شپو کې
نوی شور، نوی آواز
نوی طرز او نوی ساز
آسمانو ته پورته کېږي

په رګونو د زمان کې
د خیالونو په توفان کې
د اشعارو په عنوان کې
د ځوانانانو په ارمان کې
نوی خیال، نوی عنوان
سره لمبه د ارغوان
را تاوېږي او بلېږي

# اشنا ته

هېر کړه آشنا دا تېر عمرونه هېر کړه
باده در نیسه تېر غمونه هېر کړه
کاروان دعمر اشنا
کله دربېږي کله صبر کوي
پیاله کړه پورته چې مهلت کم دی

بیا به ځواني وي خو بهار به نه وي
یا به بهار وي دزړه یار به نه وي
زه له دې عمره اشنا
سخت اند ښنمن یمه او ویره لرم
له دې ظالمه انتظار کم دی

مهلت دعمر یوه برېښناده برېښنا
یوه غمجنه شان خندا ده خندا
په دې خنداکې اشنا
یو رپ لذت دی گوره لاړ نشي
چې افسوسونه بیا ثمر نلري

که زاهدان په سجاده ښه ښکاري
رندان بیخوده په باده ښه ښکاري
یوه گړۍ عقل اشنا
عذاب عذاب دی گوره پام کوه
چې افسوسونه بیا ثمر نلري

را ځه چې ځان له یو جهان کو پیدا
ځو لېوني او ځو مستان کو پیدا
سارا ته لاړ شوا شنا
هېر کو دا واړه بند یزونه هېر کو
په بدمستۍ کې ځو نارې و وهو

زړه مې سارا پسې ژړاوي کوي
زما تېر عمر ته ښېراوي کوي
را ځه چې وزو اشنا
وېرېږم لاره دسارا بنده شي
جنون به گرزي سرگردان را پسې

## دسالنګ ترانه

په لمـــــن د هند وکش کې
بيا د کار مـــــوزيک غرېږي
د مـــــا شين تر دوړو لاندې
د هيـــواد ا نسان خوځيږي

د لته فکــــر د بقـــــــادی
ژوندی شوی په سالنګ کې
ما ليـــــد لې معجــــزې دي
د کا ر ګــــرو په کلنګ کې

غرونه غرونه به هــــوار شي
کار به وکـــــــري ګلـونه
سېل به مار شي سين به واوړي
طبيعت بـــه شي پـــه ملـونه

علم او کار ســـره يو شوي
ما توي داسختې پـــــر ښي
د سا لنګ له زړه نه باسي
د انسان د فکـــر کـــر ښي

## هغوی چې نه هېرېږي

### رحمن بابا:

خرقه پوش دی له شا هانو بې نیاز دی
سر تر پا یه حرارت دی سوزو ساز دی
د خیال دباغ دګلو یوه ورېمه ده
دجذبو په آسمانونو کې پرواز دی

### خوشحال خټک :

یو سېلاب دی چې له لوړو را روان دی
د پښتــو او پښتنوالي قهـــــرمان دی
ټیټ یې مه بوله غورځنګ وربا ندې مکړه
پس له مرګه هم دتورې تــــرجمان دی

### حمید ماشوخېل :

دپښتو د خـــــوږې ژبې یکه تاز دی
په ایجاد درنګینیــــو کې ممتاز دی
په هر بیت کې نخولې دي خیالونه
دده شعر، شعــــر مه بوله اعجازدی

## سم تګ

په سفر کې له کاروانه ســـره سم تګ
د پېـــړۍ په مقتضا قـــدم قـــدم تګ
کوم چې باسي توفاني بېړۍ له موجه
همدغه دی منتخب او محتـــرم تګ

## بې موقع خندا

ما کتاب د تجـــــــربې کې دي لیدلي
دغـا فل په درما نـــــد ه لمبې ختلي
چا چې کړې بې موقع خوب و خنداده
د برېښنا په شانې یوه خنـداکې تللي

## د دنیا لار

چې دنیا ځي په هغه لار بــــــه روان شې
په دې خپله لار به خپله ســـــر ګردان شې
خود سري به دې له غرو څخه غور ځار کړي
بیا په تېره څه حاصل چې پشیمـــــان شې

## هندوکش ته

هندو کشــه را روان کړه سېلاوونه
چې له توانه پورته شوي دي دردونه
داشیا دغرونو تا جه د ر نه جار شم
څنګه نه سوځي د تا پلې او ر ګونه

## پټ خم

محتسب که هر څو چم داحتساب کړي
رند پو هېږي چې په زړه کې څه حساب کړي
په قبا کې يې پټ کـــړی خـــم دمیـو
که په خـــوله هر څو وردونه دثواب کړي

## دهر چا جهان

دا جهان که هر څو لوی او سورور دی
خو دفکـر تاخت و تاز ته یو بځر دی
دغه یوه قطره شبنم هم ترې خلاص ندی
چاته اوښکه دشبنم، چا ته گوهــــردی

## دعا

ربـــه را ولې توفـــان، توفـــان دکـار
نـــوی نسل او طبقـــــــه د ابتکار
موږه ننګ ددې وطن که په دار جګ شو
آلـــوده بـــه شي په مـــوږه هغـــه دار

## طلا

دا طلا چې هر سړی يې په ارمان دی
دا قاتل د شــرافت او د وجـدان دی
فلز نه دی استبداد دی تجـــاوز دی
د بشر په عواطفـــو کې شیطان دی

## سرې ورځې

په سحر کې رڼايي د ژونـــــدون نشته
په ما ښام کې شور دعشق او جنون نشته
هـــــره ورځ له بلې ورځې ســــړه کېږي
په سبا کې حــــرارت د پـــــرون نشته

## پښتنو ته

د نجات د قافلې له ســــره هېــــر شوې
دژوندون ساحل نه پټو ستر گو تېر شوې
د توفان په ځپو ډوب شوې خوار پښتونه
د نفاق په سېلاوونو کې چا پېـر شوې

...

خدا يه ماله د کلام زور او تأثيــر را
رسا عقل، پاک ايمان، قوي تدبير را
يا نجات د وښيارۍ له غمه را کړه
لېونی مې کړه ددې هنـر اکثير را

## ظالم ته

جګ ولاړ به دا اسمان وي ته به نه يې
همدا راز به دا جهان وي ته به نه يې
خلقې به ستا له ظلمه حکايت کړي
آسوده به مظلومان وي ته بې نه يې

## ابدي شرم

زه له مرگه نه وېرېږم، نـــه وېرېږم
دلطيفې سا په جال کې نه بندېږم
که دځوانې معرکې پهلوان نشم
ترابده به په خاورو کې شرمېږم

## ژوند

ژونـــد دماتو او سپليو سلسله ده
يا دځــوخندا ژړاوو قافله ده
يوه بربښنا دعدم په تورکوگل کې
دسکون په اندامــو کې زلزله ده

## شرق او غرب

شرق او غــرب سره يو بل ته اوښتلي
نه پـــوهېږم زمانې بيا څـــه کړلي
راته ښکاري دياغي انسان له لاسه
دې دنيـا له تباهۍ ســــــره منلي

## د پيسو مرض

هسي تللي يو دخپل ځان په غمو کې
د پيســـو په تموج او توفـــــانو کې
که انفاس دمسيحا راشي علاج ته
مبتلا به شي په فکر د پيســـو کې

## ژوندئ خبره

او ښکې ندي چې له ستر گو مې بهېږي
زړه مې ويلي شو له ستر گو را تويېږي
که مې مړی يوه ژوندئ خبره واوري
پس له مر گه به په خاورو کې نڅېږي

## دژوند پهلوان

بې همت وي چې له ژونده شکايت کړي
لېونی وي چې د تېـــرو حکايت کـــړي
پهلوان وي چې د ژوند په معـــر که کې
موا نع لري کوي او حـــــرکت کړي

## ستا دزلفوکړئ

اې سپوږميه ستا د حسن څه تأ ثير دی
چې عالم دې دجلوې په دام کې گير دی
خيا لات او الهامات او زما فکــــــر
يوه کړئ د ستا دزلفـــو دځنځير دی

## ستا نظر

بيا مې زړه دتا دزلفو په دام گيـــــر شو
بيا مې خيال دتا په حسن کې اسير شو
ستا نظر چې زندگي تـــــرينه اوريږي
دلايق له سينې تېــــــر شـــو عالمگير شو

## بې خونده ژوند

زموږ بېرنګه او بې خونده ژوندبه تېر شي
سم ملت او نوی ژوند به را بر سېر شي
ولي هیڅکله به نشي چې له خلکو
زموږ بې رنګه او بې خونده ژوندون هېر شي

## تا وده زېري

هغه وخت چې کام له خوبه رابیدار شي
د وطن غرا و صحرا ګل و ګلزار شي
زما خاورو لره راوړئ تا وده زېري
ګوندې وي چې مې هډوکي په کرار شي

## بې عشقه زړه

که په زړه کې عشق د کام او هیواد نه وي
یا په مټ کې توان توفیق د جهاد نه وي
هسي زړه او مټ د ګور چینجو ته ورکړئ
څو عامل د بې ننګي او فساد نه وي

## لوی دښمن

که مې لاس په کان د زرو باندې بر شي
اور به بل کړم پې چې خاورې د ممر شي
تر هغو به د سکې بدي پرې نږدم
څو یې نوم نشان له ځمکې نه بهر شي

## دعقل غلامي

يا د عقل لاره خوشې کړه مجنون شه
د دنيا لــــه مشاغلو را بيـرون شه
يا د عقل غلامي ته ځـــان تيار کړه
سقرات شه، ارستو، افلاتــــون شه

## دخان خر

کوم ملت چې خر دخان وي ملت نه دی
چې د خپل قوت نادان وي ملت نــه دی
چې د نــــورو له ويا لې شخـــه ويرېږي
او غـــافل د خپل توفـان وي ملت ندی

## زما قلم

زما قلم به هله لوړ او محترم وي
چې د ښمن د استبداد او د ستم وي
چې د خلکو د دردو رازونــه وايي
خدا يه وي به چې هغه زما قلم وي

## زوړ نظا م

مکتب غم، اداره غم، کلی او کــــور غم
ميندې غم، پلرونه غم، نيايي او ترور غـــم
د زاړه نظام له ظلم او لـــــه فساده
په وطن باندې را گرزي کور په کور غم

## انقلاب ته

رب دې راوله اې پلاره انقلابه
اې زموږ عالي مکتبه اې کتــــابه
دا وطن په ظلم هسې خراب شـوی
چې فاسد دی له يوششه تر تهدابه

## انقلابي سر

سر هغــه دی چې په اور د انقــــلاب کې
په لمبو کې ، په توفان کې، په سېلاب کې
د مـــــزدور او د بزګـــــر د حق لپاره
ځړېدلی وي د دار په ســـره تناب کې

## نن او پرون

د نن اوښکې د سبا ورځې توفان دی
د نن طفل د را تلونکي پهلـوان دی
د دنيا په زور غـــــــره نشې حاکمه
ستا جهان سبا د بل سړي جهـا ن دی

## انسان ته

هلکتوب په لوست او ليک کې درنه تېر شو
په ځوانۍ کې حرص د مال درنه چاپېر شو
په زړښت کې سمه شمه د سهـــــا ر يې
څوک چې زوړ شو ناتوان، چې مړ شو هېر شو

## د قربانۍ ځای

په کوم ځای کې چې د علم ډېوه بل شي
يا د فکر لمبه وخوځي جل بل شي
د پتنګ په شانې ځان ترېنه قرېان کړه
چې سينا دې له ايرو څخه خجل شي

## ځوان او زوړ

ځوان هغه وي چې د ځوان فکر خاوند وي
نه هغـــه چې د اوهامو په دام بند وي
سل ځوانان دې تر هغه زاړه قربان شي
چې خاوند د نوي رنګ او نوي خوند وي

## له ځوان څخه ګيله

ځوانه ډېر ډېر ګيله من يم ستا له کاره
ستا له فکره، ستاله پوهې، ستاله ډاره
په نغمو کې دې د ژوند سندره نشته
کام ته نه شې پوهولای سمه لاره

## پا څېږه زلميه

ستا په مخ باندې جهان ګل و ګلزار دی
ستا په مټ د ژونـــدانه دار و مدار دی
د غفلت له خوبــــه پا څېږه زلميـــــه
چې جهــان دې د جلوې په انتظار دی

## دوطن ځوان

هغه ځوان چې د وطن په درد سوځېږي
که سل ځله پر مخ لوېږي پورته کېږي
ما ترې زر ځله قربان او صدقه کړې
چې د مرگ په پوله نا ست دی لا خوځېږي

## فرعون ته موسا

ظالمان که فرعونان وي ته موسا شه
دناتوان او دمظلوم د لاس عصا شه
سر کشان که په نشتر زړونه زخمي کا
ته ملهم او د زخمي د زړه دوا شه

## د ځوانې عقیدې پهلوان

نه په ځوان عقیده من یم نه په زوړ
نه په لوخ او نه په وړي ، نه په موړ
چې د ځوانې عقیدې پهلوان ته وي
پسې نه گرزم که گرم وي که سوړ

## له خلکو سره یو ځای

ځوانه ځان لپاره ژوند څه ژوندون نه دی
گوره پام کړه دا سبا دی پرون نه دی
څو د خلکو په غمونو کباب نه شي
هغه تیره د سارا ده ، لړمون نه دی

## رښتونی ځوان

ځوان هغـه دی چې فاتح له دنیا تېر شي
نه هغـــه چې په دامونو کې چاپېر شي
چې کړه وړه یې یاد ګا رونه شي تاریخ ته
نه هغــــه چې له پېړیو څخه هېر شي

## اروپا يي شا عران

له څه مودې را دورې مې غوښتل له ارو پا يي شعرونو سره دځوانو پښتنو شاعرانو او ليکوالو د بلدولو لپاره د ارو پا يي شاعرانو ځيني شعرونه په پښتو شعر تر جمه کړم مگر د وخت تنگسيا دا هيله وځنډوله .اوله شپږو ميا شتو را په دېخوا ددې هيلې د پوره کولو شونتيا لاس ته را غله او ما دغه کار پيل کړ او ارو پا يي شعرونه مې لکه د هغوی اصل پښتو ته را واړول . ددې زيا ر د لومړنۍ نمو نې په ډول مې د « پو شکين »، « لرمنتوف » او« پتوفي» څو شعرونه د دوی له لنډې پېژندگلوۍ سره په همدې دفتر کې وړاندي کړل . البته ښيلې ژبې حتی يوه وا حده ژبه هم چې کله په متفا وتو فرهنگونو کې سره جلا شوې وي ، تر عامو اشترا کوتو ور هغه خوا ، خپلې ځا نگړې او جلا مقولې اصطلاحا ت او فر هنگي احکا م لري چې له نورو ژبو سره د هنري را کړو ورکړو او دژباړلو او را ژبا ړلو په چاره کې ستونځې را منځ ته کوي او حتی کله دغه را کړه ورکړه ناشوني کوي او هغه متل ربښتو نی کېږي چې وا يي :« د شعر ژبا ړونکی خا ين دی.» ما د ژبا ړل شويو شعرونو د وزن او غاړه ايزې ځا نگړتيا او دقا فيو درعا يت لپا ره کله يو لفظ يا جمله په ژبا ړل شوي متن با ندې زياته کړې ده خو ددې لپاره چې دتر جمې امانت رعا يت شي هغه مې په قوسونو کې دننه را وستي دي تر څو اصلي متن بې در که نشي .

د پتو في له «غروب » او د لرمانتوف « دژوند جا م » نه پرته ، په نورو ټولو شعرونو کې د هغوی د وزن، قا فيې او سندريز آهنگ اصا لت سا تل شوي دي او بې له هر راز فني تصرف څخه ، د خپلو ژبو په اصلي رنگ کې پښتو ته را اړول شوي دي .

# الکسا ندر سرگیویچ پوشکین

ستر روسی شاعر الکسا ندر سرگیویچ پوشکین د ۱۷۹۹ کال د جون د میا شتې په شپږمه نېټه په مسکو کې زېږېد لی دی . خپل لومړني شعر یې له لومړنۍ زده کړې وروسته ، په لېسه کې ووایه . له زده کړې ورو سته دبا ند ینیو چا رو په وزارت کې په کا ر بو خت شو ، خو خپل ټول وخت یې په ا د بیا تو تېر کړ . په ۱۸۲۰ م کال کې د «روسلا ن او لودمیلا» خپرېدو ډېر شهرت ور کړ.پو شکین لا زده کوونکی و چې انقلابي ټو لنې ته نیږدې شو او ددې ټو لنې مفکورو دده په ټولو آثا رو اغېزه وکـــــړه . پوشکین دخپلو څر گندو انتقادونو له کبله یو ځل د روسیې جنوب ته او بل ځلي یوه کلي ته تبعید شو .

په ۱۸۲۵ م کې د روس نظا مي ا فسرا نو یو نا کام بغاوت وکړ . ددې بغاوت څخه وروسته تزاري حکومت غوښتل پو شکین خپلې خوا ته جلب کړي نو له تبعید څخه یې بېرته را وغوښت خو پو شکین د پا څون دمفکورو پلوی پا تي شو او په دې وخت کې یې دا سي شعرونه ولیکل لکه « سایبیریا ته » چې په دې مجموعه کې چا پ شوی دی . له همدې کبله د روسیې دمر کز وا ک لرونکو ، له ده څخه کرکه کوله ، او دده په ښځه یې تو ولګاوه . ددې تورونو په نتیجه کې پوشکین د یوه فرانسوي نظا مي ا فسر سره چې د تزار په چو پړ کې و ، په مخا مخ دوئل کې ټپي شو او دوه ورځې وروسته مړ شو . دا واقعه د ۱۸۳۷ م کال د جنوري په ۲۷ پېښه شوه . پوشکین تر اوسه د روسیې د ادبیاتو تر ټولو ستر او محبوب شاعر پاتي شوی دی .

دپوشکین ستر آثار دا دي:

په شعر کې د « یو ګني اونیګین»منظوم ناول ،« پولتاوا » ، «مسي

سپور»، او په نثر کې د «دبروسکي» او د «کپتان لور» ناولونه او نور.

## انعکاس

کوم وخت چې په لوی ځنګله کې غبر د ځناورو شي
يا چې د تـــرم له خولې نه پورته يـــوه خبـــــره شي
کوم وخت چې له وربځو نه، د تالندې آواز شي خور
يا دغـــونډۍ شا نه کومـــه پيغله په سنـــد رو شي
ته په تش ما حول کې بيا هغـه غبر ګـــــوې بېـــرته
هر چا ته د خپلې خـــــــولې خرې اوروې بېرتـه

ته په غـــبر د تالندې ، برېښنـــــا او دڅپـو خبر
ته په (ســـويو ستړو) آوازونـــو د شپنـــــو خبر
ته هـــــر چا او هـــــر شي ته ، دده دغبر ځواب وايې
ته د ټولـــــو واړو پـــــه نغمـــو او ترانـــو خبـــــر
تا ته مګــــر څـــــوک ستا د سنـدرو ځوا ب نه وايي
اې شـــاعره يو ستـــا د خبرو ځـــواب نـــه وا يي

# انچار

د سوځوونکو شغلو دلاندې
په یوه وچه لویه ببد یا کې
انچار ولاړ دی او پیره کاندي
یوا ځنی دی تږوله دنیا کې

دې تږیو د ښتو دی زېړولی
د خپل غضب په ورځو شپو کې
بیا هرې ځانګې تې څڅولي
زهر په پا ڼو او په ریښو کې

بیا چې ګرمي شي، دده له لښتو
اوبځن زهرونه ورو ورو څڅېږي
خو چې ما ښام شي، په پلنو دښتو
زهر شي غوټه را ټه ځلېږي

که یوه ګرزانده وریځ پیدا شي
او په دې ونه را وورېږي
د ونو ځانګو نه، بیا جلا شي
د زهرو ځاځکي، په ریګ څڅېږي

۱ــ انچار: د زهرو ونه

شد ید یو امر یو سړي بل ته
ور کړ چې لاړ شه تر اې انچاره
هغه هم لاړ شو، دغه اجل ته
او بېرته راغی تر بل سهاره

د مرګ شوده یې راوړه ناچاره
هغه ظالم ته له مجبورۍ نه
پر مخ یې راغله د خولو لاره
حال یې خراب شو له کمزورۍ نه

پر خاورو پرېووت تر کېږدۍ لاندې
لکه چیچلی چې وي تور مار
پړ مخ د خاورو، په ځمکه باندې
په پښو کې مړ شو دخپل سرکار

په هغو زهرو یې آلوده کړل
ظالم فاتح د مرګي غشي
بیا یې ملکو ته د ګاونډیانو
د مرګ لپاره هغه کړل خوشي

# وریځ

اې دورک شوي توفان ،وروستۍ وروستۍ وریځې
همدا یوائحې ته یې ،په شنه آسمان کې خوځې
ا یکې یوائحې ته یې، چې غمجن سیوری کوې
یوائحې ته (په موږه) ، خوشحاله ورځ غموې

یوه شېبه مخ کې دې وه، مخه دهسک پوښلې
او هیبتنا کې برېښنا، ته وې پـــــه غېږ نیولې
مبهمه تا لنده دې ،(زموږ پر سر) کوله
نا روغه ځمکه دې هم، په باران او بوله

ورکه شه وخوځېږه، اوس ستا موده پوره ده
توفان تري تم شوی، او ځمکه هم تازه ده
د ونو پاڼو باندې، باد تېروي لاسونه
او له آسمانه شړي، د ستا خواره پوځونه

# ک... (۱)

هغه خوږه شپېه په ياد ده زما
چې مې نظر کې ته له ورا شولې
لکه يو ښکلی الوتونکی خيال
لکه يو پاک ښايست پيدا شولې

ډېر وخت دتا لطيف آواز راته
د نامېندۍ دغم اوږدو شپېو کې
ښکلی تصوير مې دې په خوب ليده
د شور ما شور په بدو اندېښنو کې

کلونه تلل، ياغي ټکان د توفان
پو او پنا کړل پخواني خوبونه
ستا آسماني صورت او ښکلی آواز
هېر مې شول واړه (لکه هېر خوبونه)

په لري ځای کې ورو ورو ورځې زما
په تياره بند کې تېرېد لې هدر
نه بل ژوندون، نه بل الهام، نه مينه
نه بل معبود ، اونه داوښکو اثر

۱ ــ ک...: دشاعر دمعشوقې پټ نوم

روح ته مې وخت دويښېدو راغلی
بيا مې نظر کې ته له ورا شولې
لکه يو ښکلی الوتونکی خيال
لکه يو پاک ښايست پيدا شولې

زړه مې رپېږي دخوښۍ له زوره
ځکه چې بيا يې شول ورک شوي پيدا
هم يې ژوندون، هم يې الهام، هم مينه
هم يې معبود، هم يې دمينې متا

## سایبیریا ته

د سایبریا د ځمکې زړه کې
و ساتئ خپل ویاړ جن زغمونه
ستا سو غمجن کار به ورک نشي
نه د افکارو لوړ پروازونه

هیله چې خور ده د بدمرغیو
بیا به د ستاسي تیاره زندان ته
سترزیري خپور کړي د خوشحالیو
مطلوب فرصت به راشي زمان کې

مینه دوستي به ستا سي مکان ته
له تیارو ورونو در ننه کیږي
لکه دا اوس چې ستا سو زندان ته
زما غږونه آزاد آزاد رسیږي

مات به شي واړه دا ځنځیرونه
بندیخانې به ړنګې شي بېرته
وابه ورئ ورو کې هر کلیونه
ورونه به در کړي توري په بېرته

# د ژمي ماښام

آسمان تياره دی واورين توفان کې
په گردلوکې واوري څرخېږي
د ځناورو په شان سوران کي
د ماشومانو په څېر ژړېږي

کله يو وارې زوړ بام د پاسه
خورو وښو کې په شور ماشور شي
لکه ناوخته پرديس ناڅاپه
کړ کۍ وهي ، غلط ترې لور شي

زموږ غريبه زړه جونگړه
سخته غمجنه ، زياته تياره ده
پرتا زمابلهٔ کۍ[1] څه له
د کړکۍ مخ کې چوپيا خوره ده؟

يا د توفان کړيکځن آواز کې
يې سترې شوې ، ستومانه شوې
يا د سنيو د څرخ آواز کې
د خوب په تال يې پرېشانه شوې

١ ــ بلهٔ کۍ: د بلهۍ اسم تصغير دی، له دې څخه دپوشکين مراد خپله دا يي ده چې دی يې له

وړکتوبه روزلی او لوی کړی دی.

اې زما د خوارې ځوانۍ ملګرې
راځه چې وچښو داشرابونه !!
راځه چې غم ته پیالې کړو سپرې
یو څه خوشال کړو خپل غمجن زړونه

ماته سندره د مرغه [۲] وایه
چې ښنګه او سي نورو ملکو کې
ماته سندره د پېغلو وایه
چې او به وړي سهار سپېدو کې

آسمان تیاره دی واورین توفان کې
په ګردلو کې واوري څر څېږي
د ځناورو په شان سوران کې
دما شومانو په څېر ژړېږي

اې زما د خوارې ځوانۍ ملګرې
راځه چې وچښو داشرابونه
راځه چې غم ته پیالې کړو سپرې
یو څه خوشحال کړو خپل غمجن زړونه

---

۲ ــ یوه فلکلوري منظومه ا فسا نه ده چې دایي به د پوشکین په ما شومتوب کې د هغه

دويده كولو لپاره ورته ويله .

## اريون (۱)

موږه ډېر وو په بېړۍ کې
دراوه ځينو با دبان
نورو گردو په يو آن
پارو گان وهل بېړۍ کې

زموږ پوخ رهبر چوپيا کې
پر سکان تکيه کوله
او بېړۍ يې چلوله
د سکوت په منتها کې

زه ډاډه ويسا په ځان
او سندرې مې ويلې
ما نوگانو اوربدلې
نا څا پي راغی توفان

واړه مړه شول په بېړۍ کې
برېښنا، تالندې، توفان
زه مرموزه غزلخوان
يوا ځي واچولم زۍ کې

---

۱ ــ اريون : دلرغوني يونان يو شاعردی. افسانه روايت کوي چې يو وخت سمندري غلو داريون په بېړۍ با ندې حمله وکړه، يرغلگرو غوښتل چې اريون مړ کړي او مال يې ولوټي . اريون اجازه وا خيسته چې ترمرگ دمخه خپله سند ره وواييي . اريون سندره وويله او ور پسې يې ځان سمندر ته وغورځاوه . سمندري « دلفين» چې داريون سندرې يې په زړه سخت اغېزکړی و، هغه يې وا خيست او د سمندرڅنډې ته يې ويوست . پو

شکين دا ترا نه د خپل وخت په ځانګړو پيښــو  با ندې ليکلې او همغو ته پکې اشاره کوي.

بولــــم تېرې تـــــرانې
د(رانه) لمر وړانګو لاندې
ديوې لويې پر ښې وړاندې
وچـــوم لندې چـــامې

# بندي

زه ترشايم د جالونو دلندې بنديخانې
تما شه کوم په بند کې ديوې ځوانې با ښې
ارمانجن اشنا له ورايه رپوي خپل وزرونه
خوځوي تر کړکۍ لاندې ډک له وينو خوراکونه

کله ووهي مشوکه، کله ما پلو ته ګوري
لکه فکر کې يې کوم شی(غلی) زما لپاره ښوري
په کتو او آوازونو اشارې کوي وما ته
غواړي ووايي چې: راشه والوزو لويې فضا ته

موږ آزاد مرغان يو وروره، راځه وخت دی چې تېرېږي
راځه والوزو اې ځای ته چې ترو ريځو غر ښکارېږي
هغه ځای ته چې هغه کې دشنه بحر ناظران يو
هغه ځای ته چې يوا ځې زه او باد يې خاوندان يو

# دواکخ[1] ترانه

ولي دخوښی آواز چوپ شوی دی
اې دساتېرې سندرو پورته شئ!
تل دې نرمې پیغلې ځونې ښځې وي
موږ سره چې عشق درلودلی دی

ډ ک کړئ ګیلاسونه خپل
تل د ګیلا سونو ته
تیګو شرابونو ته
واچوئ ګوتګی خپلې

را شئ ګیلا سونه سره پورته کړو
تل دې وي شعرونه، تل دې عقل وي
و ځلېږه ته اې مقدس لمره!
هسې چې څرا غ سپېدو ته ژېړ ښکاري
دغسې (غلط) او درواغجن حکمت
لمر دابدي عقل ته ژېړ ښکاري
خپله رڼا بایلي آخر ورکه شي
تل دې وي لمر، ترژمی دې ورکه شي!

۱ ــ دلرغوني يونان د شرابو او خوښۍ رب النوع.

## پټه مينه

ما له تا سره لرله پټه مينه
ښايي مړه نه وي دا مينه زما په زړه کې
ځکه زه غواړم چې تا په تکليف نه کې
مګر تا به ربړوي نه دغه مينه

ما له تا سره لرله غلې مينه
په چوپيا کې په حسد او محجوبۍ کې
دا سي پاکه حقيقي سپېڅلې مينه
خدای کړي نوريې ولري هومره پاکۍ کې

# د يادګار څلی

مامجسمه ده جوړه کړې ځان د پاره
پته به وانښه نه کړي هغې ته دولس لار
پورته اوچت شوی دسکندر تر ياد ګاره
څلی زما دکار

هېڅ وخت به مړ نشم ځکه روح به مې سندرو کې
زياته تر بدن پاتي شي تل به وي ژوندۍ
يو شاعر که پاتي وي ژوندی به يم خبرو کې
پر ټوله نړۍ

لو يه روسيه به ګرده پېژني زما مقام
هر روسی ملت به زمانوم وړي په ښاغلي شان
واړه سلاوان او تنګوسان او فنلنډان په کام
کلمک دبيابان

ډېر وخت به له دې سببه يم په خلکو ګران
چې مې په خپل وخت کې ښه احساس که را بيدار
ظلم کې مې ياده آزادي کړه او احسان
ومې غوښت په خوار

بايد د شاعر مهارت کېږدي خدای ته غاړه
نه له چا وډار شي نه پابند شي د احسان
ومني ستاينه وي که توروي په ځان دواړه

لر شي له نادان .

## لر ما نتوف

لرما نتوف( ۱۸۴۱ م ـ ۱۸۱۴ م ) دروسیې دادبیا تو تر ټولو لوړه روما نتیکه څېره ده . دې ستر ادبي نا بغه تش ۲٦ کاله ژوندو کړ او که چېرې ژوندی پاتي شوی وای خامخا به دیورپ په شاعرانو کې بې سا ري مقام ته اوچت شوی و .

لرما نتوف په ۱۸ کلنۍ کې د تزار گا رد ته دا خل شو او دعمر په ۲۲ کلنۍ کې یې «د شاعر مرگ» مشهور او بې ساري شعر د پوشکین د مر گ په منا سبت ولیکه او له همدې وخت څخه یې شهرت ته مخه کړه . دی دخپل وخت په رژیم باندې دانتقاد له کبله قفقاز ته تبعید شو . دی هم د پوشکین په شان په دوئل کې وږل شوی دی . دده په باره کې ویل شوي دي :«یو مرغه و چې له جنته راغلی و او په لنډه موده کې چې د قفس زنداني و، داسي نارې یې وکړې چې له جنته راتلې.» ما دلته په چونغر کې دده شپږ شعرونه پښتو کړي دي .

د لرمنتوف تر ټولو مشهور آثار دادي : په قصیدو کې « دیمون» او« مه څېرى» . په ناولونو کې د« پېړۍ قهرمان» او په منظومو ډرامو کې « مسکو».

# بادبان

يوائحي يو بادبان د سمندر په شنه غبار کې
له لرې مټکې ښکاري او سپينچک شاني ځليږي
په لرې هيوادو کې څه تپوس کړي څه شی غواړي؟
په خپل ښکلي هيواد کې( خدا زده) څه ترې پاته کيږي
بادونه غورهار کړي، څپې يوه په بله اوړي
شا تير د بادله زوره يوه خوا بله خوا کږيږي
نه، نه ! په سمندر کې نېکمرغي نه لټوي
او نه له نېکمرغۍ نه چېرې تښتي يا پټيږي
تر سپين بادبان دلاندې شنې رڼې اوبه د بحر
له پاسه پې دلمر زرينې وړانگې پې خوريږي
ليکن ياغي باد بان د توفانو هوس لري
ممکن په توفانو کې نېکمرغي موندله کيږي

# دژوندجا م

په پټو سترګو مو شونډان دژوند په جام ايښي
د هيلو لا رکې مو ګا مونه ټول نا کام ايښي
موږ ه بې ځا يه تودې اوښکې تو يوو ور با ندې
غمي د اوښکو مو د جام په زيو خام ايښي
د مرګ شېبه به زموږ له سترګو پرده لري کا ندي
وا به خلي ټول هغه چې موږ ځانله تمام ايښي
ها وخت به پوشو چې دژوند جام لا پخوا تش و
موږ غولېدلي وو کنه دی په رښتيا تش و

# کمر

طلايي وربځي د لـــــو کمرې
په سينه باندې شپه کـــړله تېره
سبا د وخته لوبغاړې وربځـــه
په شنــه آسمان کې لاړله لري

په کمـــــر پاتي يولوند اثر شو
يکي يوائحي هلتــــــــه ولاړ و
په يوه ژور فکــــــــر کې لاړو
چوپې صحرا ته په ژړا ســر شو

## وريځې

د اسمان وريځو تل پر د ېسانو !
په شنه آسمان کې د در لـــــړونو
زما په شانې تل سر گــــــــردانو
له گران شمال نه جنــوب ته تلونو

څوک شړي تا سي ؟ آيا تقديردی؟
يا پټ حسد دی، يا ښکاره کېن دی؟
آيا د جرم دغه تأثير دی ؟
يا د دوستانو تور او نا ورين دی ؟

نه هسې نه ده ، پټو (۱) خپه کړئ
ستا سي نه حس شته او نه دردونه
همېش آزادې ، همېش سړې يئ
نه مو وطن شته ، نــــــه تبعيدونه

۱ ــ پتو یعنی پټیو او کروندو په خپلې بې بدلونه بڼې خپه کړئ او لېږد ته يې وهڅولئ. شاعر غواړي د شعر په ژبه ووا يي چې دلته ځمکه او ما حول يو رنګ او بې بدلونه دی.

• • • •

په لوخ غره کې دوحشي شمال دپاسه
ده ولاړه د کاج يکې يـــوا ځې ونـــه
له درانه خــــوبه کــږه وږه زنګېږي
د سپينکۍ واورې جامه ورباندې پلنه

همېش خوب وينې چې لري په صحرا کې
هغې سيمې کې چې لمر ترينه راخېژي
پر تاوده کمـــــــره غمجنه او يوا ځي
د خـــــرما ښايسته ونه راشنه کېږي

. . . .

تش یو زه راځم پلو د لویې لار ته
په غبار کې د برینه لار ځلیږي
چوپې دښتې غوږ نیولی خدای دربار ته
او یو ستـــــوري هغه بل سره غږیږي

د آسمان هر یو شی دروند دی او متین دی
ځکه غلې ویده شوې شنه رڼا کې
مګر ولې زما زړه له غمو شین دی
ارماني یمه د کوم شي په سودا کې؟

د هیڅ شي منتظر نه یم له خپل ژونده
او نه کړم په هیڅ تېر شوي افسوسونه
آزادي غواړم یواځې له دې بنده
هېرېدو ته د ځان غواړمه خوبونه
مګر خوب، نه دلحد ساړه خوبونه
هسې خوب چې په کوګل کې مې رپیږي
د ژوند واړه طاقتـــــونه، قوتـــــونه
او سینه کې مې سا ښکته پورته کیږي

چې کرۍ، شپه ورځ، دمینې په باره کې
ماته ووایي یو خوږ آواز سندرې
شنه څیړۍ مې سر د پاسه (په نخره کې)
سر را کوز کړي راسره وکړي خبرې

## پتوفي

ساندور الکساندر پتوفي (۱۸۲۳ ــ ۱۸۴۹)د مجارستان تر ټولو لوی شاعر دی او تش ۲٦ کاله ژوندی پاتې کړی دی. پتوفي نه يوازې يو ستر شاعر بلکې د مجارستان يو ستر ملي اتل هم دی.

# غروب

لمر لکه مړاوی گل د ځمکې په لور
سر ټيټوي او ښکته کېږي پسې
دده له سره او طلايي جام څخه
ورو ورو د نور پانې توېږي پسې
دد نيا گی له شوره ډکه ورځه
ورو ما ښامېږي او چو پېږي پسې
په دې ما ښام کې دناقوس شرنگهار
غوږ ته له لري رار سېږي پسې
دا څه زړه وړونکې آسماني نغمه ده
چې له دې ستورې را بهېږي پسې
له هغه لري ښايسته ستورې!!
له اې آزاده وارسته ستوري!!

**يا دونه :**

د پوشكين او لرمانتوف شعرونه د افغانستان را ديو د روسي ترجمان او سلاكار
« ا يگور سو چنكو » په مرسته او زيار پښتو شوي او مؤثق شوي دي ، كه څه هم هغه اوس پور پرېكړی او هغې نړۍ ته تللی دی خو زه د ژوند تر پايه دهغه ددغه احسان منونكی يم.